وَلاَ تَقْرَبُواْ الزِّنَى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاء سَبِيلاً (سورة الإسراء:٣٢)



# جنسي فلمونه، سريالونه او موسيقي

## د دې عصر ديني او اخلاقي وباء

## (حرمت، اضرار او د خلاصون لارې)

ليکوال: حمدالله شاکري



بسم الله الرحمن الرحيم
﴿رَبَّنَا ٱغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَٰنِنَا
ٱلَّذِينَ سَبَقُونَا بِٱلْإِيمَٰنِ
وَلَا تَجْعَلْ فِى قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟
رَبَّنَآ إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ١٠﴾

دمطالبو لړلیک



جنسي فلمونه



موسيقي

دتلوېزيون او راديويي خپرونو ګټه او زيان



تصوير او فلمبرداري

## مقدمه

الحمد لله رب العالمين والصلاة والسلام على سيدنا محمد وعلى آله وصحبه أجمعين وبعد:

د اسلام مبارک دین د یوې پاکدامنه ټولنې غوښتونکی دی، اسلام د هر ډول فساد، هر ډول بد اخلاقۍ او فحشاء په هر رنګ او بڼه چې وي د له مینځه وړلو او انحلال حکم کړی.

د غربي ډیموکراسۍ او د کفري ټولنې څخه وارد شوي جنسی فلمونه ، سریالونه ، موسیقي او شیطاني مډیا د نن عصر هغه فاحشه او بې شرمه وباء ده چې د ډیرو کسانو او په خاصه ټوګه ځوان نسل دیني احساسات، دینې جذبه او اسلامي اخلاق علمي سویه یې له ځانکندن سره مخ کړي دي.

دغه شیطاني خپرونې یوازې شهواني غرایزو او بې شرمۍ ته وده ورکوي، د کفارو مشابهت او د هغوی تقلید او غوښتنه ده او د فاحش عمل او بد اخلاقۍ لپاره ستره وسیله ده.

د الله تعالی د یاد او اطاعت څخه غفلت ، د زړه توروالی ، فکري نا آرامي ، نفسي خفګان او اختلافات ، او د کورني نظام پاشل ، د مال او وخت ضایع کول ، د فاسقانو تر شعار لاندې تلل ، د نفساني عزت داغول او بلاخره د الله تعالی قهر ، غضب او بده خاتمه او د خطرناکو پایلو سره مخامخ کېدل دي.

اللهم أغوذبک من ذالک

حمد الله شاکري

## د جنسي فلمونو حرمت :

د جنسي فلمونو کتل په کتاب الله، سنتو او د امت په اجماع حرام دي.

۱- بیګانه نارینه او ښځو ته د شهوت په نظر کتل، حال چې الله تعالی مؤمنانو او مؤمنو ښځو ته حکم کړی دی :[قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ * وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ ...] (النور: ۳۱/۳۰).

ژباړه: او ووایه (ای رسوله!) مؤمنانو ته چې خپل نظر په خپل واک کې وساتي او د خپلو شرم ځایونو ساتنه وکړي، دا د هغوی د پاره ډېره پاکه کړنلاره ده، هغوی چې څه کوي الله پرې خبرېږي.

او مؤمنانو ښځو ته ووایه چې پټې دې کړي سترګې خپلې (له نا محرمو) او د خپلو شرم ځایونو ساتنه دې وکړي.

بیګانه ته د شهوت په نظر کتل د سترګو زنا ده، په حدیث شریف راغلي: «فزنا العين النظر» (رواه البخاري: ۶۲۴۳).

۲- د بیګانه ښځې یا سړي اصلي عورت او د هغه ویدیو او تصویر ته کتلو کې فرق نشته او دواړه حرام دي، ځینې معاصر فقهاء وايي چې تر اصلي نظر فلم او تصویر زیات خطرناک دي ځکه اصلي نظر بالفور وي او د جنسي فلم څخه زیاته استفاده کولای شي چې فتنه یې زیاته ده.

د بیګانه سړي او یا ښځې عورت ته کتل حرام دي، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ فرمايلي:« احْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ» (احمد ۴،۳/۵ – ابوداود :۴۰۱۷، ترمذي :۲۷۶۹).

ژباړه: شرمګاه دې له ټولو پټه ساته پرته له خپلې ښځې او وينځې.

د جمهورو فقهاؤ په نزد د ښځې ټول بدن پرته له لاسونو او قدمونو او د مخ پټول د فتنې له وېرې په حجاب کې شامل دی.

جاء في موسوعة الفقهية (هيئت كبار علماء الأسلام) :

ذَهَبَ جُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ إِلَى أَنَّ جِسْمَ الْمَرْأَةِ كُلَّهُ عَوْرَةٌ بِالنِّسْبَةِ لِلرَّجُلِ الأَجْنَبِيِّ عَدَا الْوَجْهَ وَالْكَفَّيْنِ ؛ لأَنَّ الْمَرْأَةَ تَحْتَاجُ إِلَى الْمُعَامَلَةِ مَعَ الرِّجَالِ وَإِلَى الأَخْذِ وَالْعَطَاءِ لَكِنْ جَوَازُ كَشْفِ ذَلِكَ مُقَيَّدٌ بِأَمْنِ الْفِتْنَةِ. وَوَرَدَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ الْقَوْلُ بِجَوَازِ إِظْهَارِ قَدَمَيْهَا ؛ لأَنَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى نَهَى عَنْ إِبْدَاءِ الزِّينَةِ وَاسْتَثْنَى مَا ظَهَرَ مِنْهَا. وَالْقَدَمَانِ ظَاهِرَتَانِ ، وَيَقُولُ ابْنُ عَابِدِينَ: إِنَّ ظَهْرَ الْكَفِّ عَوْرَةٌ ؛ لأَنَّ الْكَفَّ عُرْفًا وَاسْتِعْمَالا لا يَشْمَلُ ظَهْرَهُ . (موسوعة الفقهية ۲۲/۱۶ ،بدائع ۲۹۵۶/۶، حاشیه ابن عابدین ۴۰۵/۱).

و جاء في فتاوي الاسلام سوال جواب :

ولا فرق بين مشاهدة المرأة الأجنبية على أصل خلقتها، أو على صورة ثابتة، أو متحركة، أو كانت رسوماً يدوية، فكيف إذا كان المشاهَد هو عورات! ومشاهد جنسية مثيرة.

۳- جنسي فلمونه ته کتل د زنا او لواطت لويه وسيله ده، الله تعالی مونږ ته حکم کړی چې: [وَلاَ تَقْرَبُواْ الزِّنَى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاء سَبِيلاً] (سوره الإسرا:۳۲ ).

ژباړه: او مه نږدې کيږئ تاسې زنا ته (د زنا له اسبابو ځانونه وساتئ) يقيناً چې دا زنا قبيحه او بده لاره ده.

واضح خبره ده چې جنسي فلمونو د فحشاء د رواجولو يو عملي او تطبيقي پروژه ده .

۴- د الله تعالی د ذکر څخه غفلت هر هغه څه چې انسان ته د دنيوي او اخروي ضرر سبب ګرځي، انسان له غفلت سره مخ کوي حرام دي، د اسلام عامه قاعده ده چې: «لا ضرر و لا ضرار في الأسلام» (په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول نشته).

او الله تعالی فرمايي: [وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا..] (طه: ۱۲۴).

ژباړه: او هر چا چې مخ وګرځاوه له ذکر زما (زما اطاعت يې پرېښود او د خواهشاتو او طاغوت لاره يې غوره کړه) پس يقيناً هغه لره به تنګ او سخت ژوند وي.

هر هغه څوک، هر هغه شبکه او اداره چې دغه فاحش عمل په خلکو کې رواجوي، دغه ډول فلمونه اسلامي ټولنو ته واروي د هغو لپاره په دنيا او آخرت کې د سخت عذاب خبرداریٔ ورکړ شوی دی :

[إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آَمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآَخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ] (حج ۱۹) .

ژباړه:يقيناً هغه کسان چې غواړي د مؤمنانو په ډله کې فحشاء او ناوړه کارونه خواره کړي هغوی په دنيا او آخرت کې د سخت دردناک عذاب وړ دی الله پاک پوهيږي او تاسې نه پوهيږئ.

## د جنسي (شهواني نيمه لوڅو) فلمونو کتلو دنيوي او اخروي اضرار:

۱- دا چې دا فلمونو کتل پخپل ذات کې د کبيره ګناهونو مجموعه ده د هغه سربېره په نورو هلاکوونکو ګناهونو د اخته کېدو سبب کيږي لکه: زنا، لواطت، استمناء (خپله انزال) او نور.

۲- په حرامو کې د مال مصرفول.

۳- عقلي تشويش او نا آرامي، يوازې د شهواني خيالونو پالنه او روزنه او په دې کې د خپل فکر مشغول ساتل، د الله تعالی د ذکر او ياد څخه عفلت اخيارول.

۴- د جنسي قوې له لاسه ورکول.

۵- د حياء او غيرت ضعف ځکه چې ددې ډول فلمونو کتل په انسان کې حيا له مينځه وړي

حال دا چې حيا د ايمان برخه ده، په حديث شريف کې راغلي: «الحياء من الايمان».

په بل حديث شريف راغلي: إِذَا لَمْ تَسْتَحِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ» (رواه البخاري).

ژباړه: هر کله چې شرم او حيا ونه لرې څه دې چې غوښتل هغه وکړه.

د «فاصنع » په لفظ کې أمر د اباحت لپاره نه بلکي د تهديد لپاره دی، يعنې حياء د بدو کارونو په مخ کې د ديوال او مانع حيثيت لري.

۶- د مزو او چړچو خيال کول او دا تمه لرل چې خپل ژوند به په شهواتو او خوندونو کې تېروم، که څه هم د ګناه خوند ډېر لږ او غم يې هميشه وي، خو داسې خيالونه کول خپل ځان ته د دوزخ او سختو عذابونو د لارې ټاکل دي، رسول صلی الله عليه وسلم فرمايلي :«وحفت النار بالشهوات» (او دوزخ په شهوتونو پوښل شوی دی).

۷- د خاوند او میرمنې، والدینو او اولاد تر مینځ د مشکلاتو پیدا کېدل او د ژوند خرابېدل، بلاخره د خاوند یا ښځې بغاوت، او طلاق او یا د اولادنو بغاوت.

ځکه دغه فلمونه ټول د کفري ټولنې په معیار جوړشوي او ترتیب شوې دي چې د همدې بغاوتونو درس ورکوي.

۸- کله چې ښځه تر خپل خاوند عصري او مډرن نارینه ویني او خاوند تر خپله ښځه عصري او د دوی په خیال ښکلې او فیشنې ښځې ویني نو خپل خاوند یا ښځه یې تر نظره ضعیف ورځي چې بلاخره یو د بل څخه د کرکې او پخپل خیال د بیګانه سره رابطه ساتل او جوړول غواړي چې ددې شیطاني خیال پایلې ډیرې خطرناکې دي.

۹- د زوجین تر مینځ د محبت له مینځه تلل، د فلمونو کتل ګناه، ګناه په زړه کې تیاره پیدا کوي، د زړه د کلکوالي سبب ګرځي بلاخره یې له یو بل سره د محبت پر ځای کرکه زیاتیږي ځکه محبت په تقوی کې دی او کرکه په ګناه او شیطان دوستی کې ده، همدا وجه ده چې نن په ډیرو کورنیو کې د خاوند او میرمنې، والدینو او اولاد تر مینځ سخت اخلافات دي.

۱۰- د سترګو نه ساتل او د بیګانه ښځو طرف ته ډیر ډیر کتل، که څه هم دا یو مستقله ګناه ده خو له بله اړخه دنیوي عذاب دی چې خپله د انسان عزت ته لویه صدمه رسوي.

۱۱- د برکت له مینځه تلل او د مشکلاتو زیاتوالی.

۱۲- د اسلامي اخلاقو او آدابو پر ځای د کفارو، فساقو او فاحشو خلکو کردار او ګفتار زده کول او په هغه باندې عادت کېدل. چې په دې باره کې رسول صلی الله علیه وسلم پخوا وړاندیز کړی دی: «لَتَتَّبِعُنَّ سَنَنَ مَن کانَ قَبلَکُم شِبراً شِبراً وَ ذِراعاً بِذِراعٍ...» (البخاري). ژباړه:

حتماً به دوی د هغوی لاره چې مخکې له تاسو ؤ (اهل کتاب،یهود او نصارا) لویشت په لویشت او گز په گز تعقیب کړي.

۱۳- د زړه کلکوالی او په عباداتو کې سستي او بلاخره د عباداتو نقضان او ضایع.

۱۴- په دنیا کې د ژوند د اصلي هدف څخه انحراف او خپل څو ورځې ژوند بربادول.

دنیا څه ده ؟ او په دنیا کې د ژوند هدف او مقصد څه دی ؟

الدنیا: ظل یزال (دنیا تېردونکی سیوری دی )، دلته څو ورځې ژوند دی چې بیا هیڅکله نه را گرځي.

په دنیا کې د ژوند عرض د الله تعالی بنده کې کول او مقصد یې د الله تعالی رضاء حاصلول او آخرت د تل تر تله ژوند لپاره د نجات او سعادت توښه برابرول دي.

همدا وجه ده چې الله تعالی په زمانه باندې قسم کوي [و العصر] ځکه چې د انسان د پاره په دنیا کې ژوند ډیر زیات اهمیت لري.

قسم پر الله که سړی یوازې د دنیا د ژوند په مقصد ځان پوه کړې نو په تیر عمر به ډېرې اوښکې توې کړي او هیڅکله به خپل ژوند په لهوو، عبثیاتو او گناه کې تیر نکړي.

## د فلمونو او سریالونو د ترک کولو لپاره څو وصیتونه :

۱- د جنسي فلمونو، سریالونو او تصویرونو  د کتلو په تیر وخت پیښمانتیا او توبه او د هغو فوراً ترک کول او د آینده لپاره د هغه د ترک کلک عزم کول او د گناه په ترک باندې صبر اخیارول.

۲- د فلمونو او سريالونو ټول مواد له موبايل، کمپيوټر او کور څخه ايستل او د هغه له مينځه وړل، او د ټولو شيطاني سايټونو بلاک کول.

۳- د فلمونو او سريالونو پر ځای د ديني کتابونو او صوت ځای پر ځای کول لکه :

د قصص الأنبياء کتاب او يا صوت (په غږ کې)

د سيرت نبي کتاب او يا صوت

د سيرت صحابه کتاب او يا صوت

د اسلامي سايټونو مطالعه او په خاصه توګه د «آن لاين اسلامي لارښود» مطالعه ځکه چې په دې پاڼه کې د معاصرو بلاوو بيان او د هغه څخه د خلاصون شرعي لارې پخپله ژبه بيان شوې دي.

۴- پنځه وخته لمونځ په جماعت ادا کول ځکه کامل لمونځ سړی له بدو کارونو ساتي او د لمانځه کمال په جماعت سره ادا کول دي او د ښځې لپاره په خپل وخت لمونځ سره له ټولو احکامو.

۵- د قرآنکريم څه حصه تلاوت کول او د قرآن تلاوت ته غوږ نيول.

۶- د سبا او بېګا اذکار او په خاصه توګه د البقرې سورت آخري دوه آيتونه (آمن الرسول --- آخره) پورې تلاوت کول.

ځکه چې دا آيتونه د هرې بلا او وباء دفع کوي، په حديث شريف کې راغلي: :«من قرأ بالآيتين من آخر سورة البقرة في ليلة كفتاه» (البخاري).

۷- د نيکو او صالحو خلکو ملګرتيا او د فاسدو خلکو له ملګرتيا څخه ډه ډه کول ځکه چې الله تعالی د صالحو خلکو سره د ملګرتيا حکم کړی دی: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَكُونُواْ مَعَ الصَّادِقِينَ] (التوبه ۱۱۹)

ژباړه: ای مؤمنان له الله څخه وویرېږئ او له صالحانو خلکو سره ملګري شئ.

٨- د بې کارۍ او فراغت څخه ځان ساتل ځکه د بې کاره سړي مغز د شیطان دوکان وي، خپل ځان په عبادت، کسب کار، علم، لږ لږ جسمي تمرین ځکه چې ټول وخت په لوبو او تمرین مشغولېدل یو بله بلا او وباء ده چې اوس ډیر ځوانان د درس او تعلیم پر ځای په همدې لوبو بوخت دي، د صالحانو او علماؤ سره ناسته، د خپل اهل سره ناسته او د خپلو خپلوانو پاللو باندې ځان مشغول ساتل.

٩- د سراسري تباهۍ او مردارۍ څخه ځان ساتل :

د فلمونو په کتلو کې د دین ضایع کول، د وخت ضایع کول، د کارونو، دندو او علم ضایع کول، د الله قهر او غضب، د زړه وژل، د حلال پر ځای د مردارې لارې غوره کول دي.

په مرداره طریقه د نکاح لپاره د ښځې انتخاب، د شرعیت خلاف په مرداره طریقه کورواله، په مرداره طریقه ژوند تېرول او د کفارو له تقلید دود او رواج څخه پرته بل څه پکې نشته. حال دا چې په اسلامي شریعت کې د خواهش پوره کولو پاکیزه لارې شته.

١٠- د اوږدو آرزوګانو ترک کول او د مرګ یادول، ځکه چې د دنیا ژوند ډیر لنډ او محدود دی د مرګ نېټه چا ته معلوم نه ده، د ګناه خوند ډیر لږ څو دقیقې، څو ساعته، څو ورځې دی چې تیریږي خو غم او درد یې باقي وي... نو وروسته څه... مرګ... قبر..... حساب... د ښو او بدو نتیجه او تر تله عذاب.

**پس ای زما وروڼو او خویندو!** څوک چې پر دغه فاحشه وباء اخته وي خپل پالونکي، پیدا کوونکي، روزې درکوونکي، فناء کوونکي رب (جل جلاله) طرفه ته رجوع وکړئ او توبه وباسئ :

الله سبحانه وتعالی ټولو بنده ګانو ته د توبې او رجوع کولو لاره پرانستې ده او خپلو یاغي بندګانو ته په ډيره مهرباني سره ارشاد کوي چې :

[يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لاَ تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ] (الزمر ۵۳ ).

ژباړه: ای زما بنده ګانو! کومو کسانو چه پر خپلو ځانونو تيری کړی دی د الله له رحمت څخه مه ناهيلې کيږی يقينًا الله ټولی ګناوی ښني هغه خو ښونکی اومهربان دی.

مګر که توبه مو ونه کړه نو بيا د خپلو خطرناکو پايلو انتظار باسئ :

[فَإِنْ يَتُوبُوا يَكُ خَيْرًا لَهُمْ وَإِنْ يَتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا وَالْآَخِرَةِ وَمَا لَهُمْ فِي الْأَرْضِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ] (التوبة: ۷۴).

ژباړه: (اوس) که دوی توبه وکړي، دا به دوی ته ښه وي او که مخ واړوي الله پاک به دوی په دنيا او آخرت کې په دردناک عذاب سره وکړوي او دوی ته به د ځمکې پر مخ نه کوم دوست وي او نه هم مرستندوی.

او که توبه او استغفار وکړو د ټولو سختيو څخه به نجات ومومو :

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: «من لزم الاستغفار جعل الله له من كل ضيق مخرجاً و من كل هم فرجاو رزقه من حيث لا يحسب» (سنن ابی داؤد).

ژباړه: چا چې استغفار کول پر خپل ځان لازم وګرځول نو الله (جل جلا له) به ده ته د هرې سختئ څخه د خلاصون لاره پيدا کوي او د هر درد او غم څخه به يې خلاصوي او د داسې طرف نه به رزق ورکوي چې د ده ګمان هم نه وي.

و بالله توفيق وصلی الله علی محمد وآله وصحبه وسلم اجمعين

# موسيقي

## تعريف :

موسيقي اصلاً يوناني لفظ دی چې په غناء او مزامیر یې اطلاق کیږي.

غناء: هغو سندرو ته وايي چې د عشق بازۍ فحشاء او درواغو او نورو لهو لعب طرف ته جذب کوونکي وي، یا هر هغه غږ او آواز ویلو ته وايي چې د موسیقي له آلاتو سره غږول کیږي.

او مزامیر د موسیقی آلاتو ته وايي.

د موسیقي اوریدل په قرآن، سنتو او د امت د جمهورو فقهاؤ په نزد حرام دي :

## اول – په قرآنکريم کې د موسيقی حرمت :

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ وَيَتَّخِذَهَا هُزُواً أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ] (لقمان 6).

ژباړه: او ځینې له خلکو هغه دي چې عبثې خبري اخلي تر څو خلک د الله له لیارې نه په بې علمۍ سره واړه وي او ونیسي دا (حقه لار) په ټوکو مسخرو، نو د همدغو خلکو لپاره سپکوونکی عذاب دی.

ابن مسعود رضی الله عنه د «لهو الحديث» په تفسیر کې وايي :«والله الَّذي لا إله إلاَّ هو إنَّه الغنا».

دری ځله یې دا کلمات تکرار کړل چې پر الله قسم چې د هغه پرته بل معبود بر حق نشته د لهو الحديث نه مراد سندرې او موسيقي ده.

قال ابن عباس رضي الله عنه: هوالغناء، وقال مجاهد رحمه الله: اللهو الطبل (تفسيرالطبري) وقال الحسن البصري رحمه الله: "نزلت هذه الآية في الغناء والمزامير" (تفسيرابن كثير).

يعني: ابن عباس رضی الله عنه وايي چې د «لهو الحديث» نه مراد سندرې دي او د هغه شاګرد مجاهد رحمه الله وايي چې ددې څخه د طبلې وهل مراد دي، حسن بصري رحمه الله وايي دا آيت كريمه په سندرو او د هغه آلاتو کې نازل شوی.

د رسالت د مکتب شاکردانو (صحابه کرامو) او په خاصه توګه په صحابه کرامو کې د تفسير د دوو رئيسانو (ابن عباس او ابن مسعود رضی الله عنهما) او د هغوی د شاګرانو (تابعينو) تفسير د لهو الحديث په باره کې كفايت كوي.

ابن عباس رضی الله عنه په مکه مکرمه د علم تفسير د مدرسې رئيس وو او ابن مسعود رضی الله عنه په کوفه کې د تفسير او شرعي علومو رئيس وو چې د هغوی څخه ټول امت ته شرعي علم رسيدلی دی.

جناب رسول صلى الله عليه وسلم ابن عباس رضی الله عنه ته داسې دعا کړې ده: «اللهم فقه في الدين وعلمه التأويل»

الله ! په دين کې پوهه ورکړې او د تأويل (تفسير) علم ورکړې.

ابن مسعود رضی الله عنه د قرآن د پوهې په باره کې خپله اعتراف كوي چې «والله ما من آية في كتاب الله إلا وأعلم أين نزلت -المكان- ومتى نزلت -الزمان- وفيمن نزلت -سبب النزول».

يعني: و الله چې د الله تعالی په کتاب کې داسې آيت نشته مګر دا چې زه د هغه د نزول پر ځای، او دا چې کله نازل شوی او سبب د نزول يې څه دی عالم او پوه يم.

پس په پورته آيت کې د صحابه کرامو د دغو دوو سترو مفسرينو تفسير كفايت كوي.

همدارنګه الله سبحانه وتعالی فرمايي:[وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُم بِصَوْتِكَ وَأَجْلِبْ عَلَيْهِم بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ وَعِدْهُمْ ۚ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ إِلَّا غُرُورًا] (سورة الإسراء:64).

ژباړه: ويې ښويه او ذليل يې کړه څومره دې چه وس وي له دوی نه په عږ خپل او خپل سواره اوپلي لښکرې وربانديې راوله او په مالونو او اولادونو کې ورسره برخه وال شه او هغوی د وعدو په دام کی ونښلوه او د شيطان وعدې پرته له غولونې نور هيڅ نه وي.

تفسير جلالين او همدارنګه تفسير ابن کثير ليکي: چې د «صوتک» څخه غناء (سندرې) او مزامير (د موسيقي آلات) او هر هغه دعوت چې د ګناه طرف ته وي مراد دی.

او تفسير قرطبي ليکي: دا آيت د سندرو او موسيقی او لهو په حراموالي باندې دلالت کوي.

همدارنګه الله تعالی فرمايي: [فَمِنْ هَذَا الْحَدِيثِ تَعْجَبُونَ*وَتَضْحَكُونَ وَلاَ تَبْكُونَ *وَأَنتُمْ سَامِدُونَ] (النجم ۵۹-۶۱ ).

ژباړه: آيا همدا همغه خبرې دی چه تاسې پرې تعجب ښکاره کوئ خاندی اوژاړی نه او په سندرو ويلو سره دهغه مخه نيسئ.

تفسير ابن کثير د رئيس المفسرين ابن عباس قول نقل کړی چې هغه ويلي: «سامدون» څخه مراد سندرې او موسيقي ده، «سمود» د يمن د خلکو په ژبه کې سندرو ويلو او د هغه آلاتو غږولو ته وايي.

## دوهم- په سنتوكې د موسيقۍ حرمت :

د موسيقۍ د حرمت او د هغه د وعيدونو په باره کې ډير احاديث ذکر شوي دي دلته څو صحيح أسناد احاديث ذكر كوو :

١- رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْحِرَ، وَالْحَرِيرَ، وَالْخَمْرَ، وَالْمَعَازِفَ، وَلَيَنْزِلَنَّ أَقْوَامٌ إِلَى جَنْبِ عَلَمٍ، يَرُوحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ لَهُمْ، يَأْتِيهِمْ لِحَاجَةٍ، فَيَقُولُونَ: ارْجِعْ إِلَيْنَا غَدًا، فَيُبَيِّتُهُمُ اللَّهُ وَيَضَعُ الْعَلَمَ، وَيَمْسَخُ آخَرِينَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ، إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ». (بخارى:٥٥٩٠).

ژباړه: يقيناً زما په امت کې به داسې کسان پيدا شي چې دوى به د زنا فاحش عمل ،ابريشم ،شراب،ساز او موسيقي حلال بولي. او همدارنګه داسې کسان به هم پيدا شی چې د غرو په څوکو کې به ژوند کوي او د ماښام پر وخت چې کله سپون د هغوی پسونو کور ته راولي، کچېرې مسکين هغوی راشي او د هغوی څخه څه شی وغواړي، نو هغوی به وايي: سبا مونږ ته راشه. مګر د شپې په وخت کې به الله تعالى هغوی هلاک کړي او پر هغوی به د پاسه غر وغورځوي او بله ډله به يې مسخ شي او د قيامت تر ورځې به د خنزير او شادي په شکل وي.

٢- بل حديث شريف کې راغلي: «يكون في أمتي قذف ومسخ وخسف، قيل يا رسول الله: ومتى ذلك؟ قال»: إذا ظهرت المعازف وكثرت القيان وشربت الخمور» (رواه الترمذي في الجامع و ابن ابى الدنيا في ذم الملاهي و، السلسلة الصحيحة ٢٢٠٣).

ژباړه: زما په امت کې به د ډبرو باران يا ويشتونكي عذابونه، مسخ (شكل بدلېدل)، خسف (په ځمکه کې غرقيدل) را مينځته شي. چا پوښتنه وكړه يا رسول الله صلى الله عليه وسلم كله به دا را

مینځته کیږي ؟ ویې فرمایل: کله چې موسیقي ظاهره او ښکاره شي، سینګار ډیر شي او شرابو

څښل کیږي.

د علم حدیث د علماؤ په نزد «یکون» دوې معناوې لري، دا چې دغه ګناهونه حلال وګڼي، او یا

دا چې دغه ګناهونه داسې ښکاره او ظاهر شي چې نه څوک پرې شرمیږي او نه یې څوک منع کوي.

د القیان او القیانة په معنې کې ځینې شارحین وایي چې ددې څخه هغه ښځې مراد دي چې نورو

ښځو ته سینګار ورکوي او ناوې ګانې جوړوي په نن عصر کې ددې څخه مراد (آرایشګاوې) دي.

۳- له انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي

:«صوتان ملعونان في الدنیا والآخرة، مزمار عند نعمة، ورنة عند مصیبة» (رواه براز في

مسنده، إسناده حسن، السلسلة الصحیحة ۴۲۷ باسناد حسن).

ژباړه: په دنیا او آخرت کې دوه ملعون (واجب لعنت) آوازونه دي، چې: یو د موسیقۍ د آلاتو غږ

د سندرو په وخت کې او بل د مصبت په وخت کې آواز دی.

لعنت (د الله تعالی د رحمت څخه لرې والی) د ګناه د سخت وعید لپاره راغلی وي چې په پورته

حدیث شریف کې د دوو صوتونو (غږونو) لپاره لعنت ذکر شوی دی چې یو د سندرو او موسیقۍ

اواز او بل د مصبت په وخت کې د جغو وهل دي.

۴ -عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي

:«إني لم أنه عن البكاء.ولكني نهیت عن صوتین أحمقین فاجرین، صوت عند نعمة لهو ولعب

ومزامیر الشیطان، وصوت عند مصیبة لطم وجوه وشق جیوب ورنة شیطان» (رواه حاکم، و

البیهقي و ابن ابی الدنیا في ذم الملاهي و صحیح الجامع ۵۱۹۴).

ژباړه: زه له ژړا نه وايم (د مصيبت پر مهال له عړ او چيغو پرته ژړا منع نه ده)، مګر ما د دوو احمقو او فاجرو آوازونو څخه منع کړې ده، د لهو لعبو او شيطاني موسيقۍ آواز او د مصبت پر مهال آواز چې خپل مخ وهي، ګرېبان څېروي، شيطانې آواز.

۵ - له عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي:«إن الله حرم الخمر والميسر والكوبة وكل مسكر حرام» (رواه ابوداود في سننه، و ابن حبان في صحيحه، احمد في مسنده).

ژباړه: يقيناً الله تعالی حرام کړي دي شراب، قمار، طبله او هر نېشه کوونکی شی.

طبله د موسيقۍ آله ده چې د مثال په توګه ذکر شوی ده د موسيقۍ نور ټول آلات په همدې حکم کې راځي.

په پورته حديث شريف کې شراب، قمار او د موسيقۍ آلات يو ځای ذکر شول چې د ګناه په لحاظ په يو رديف کې راغلل.

۶ -ابو داود له نافع څخه روايت نقل کړی دی چې :«سمع ابن عمر مزمارا، فوضع أصبعيه على أذنيه، ونأى عن الطريق، وقال لي: يا نافع هل تسمع شيئا؟ فقلت: لا، فرفع أصبعيه من أذنيه، وقال: كنت مع النبي صلى الله عليه وسلم، فسمع مثل هذا! فصنع مثل هذا «حديث صحيح، صحيح أبي داوود ۴۱۱۶).

ژباړه: نافع وايي: ابن عمر رضی الله عنه د سندرو د آلاتو عږ واورېد نو په عوږونو کې يې ګوتې واچولې او له لارې تېر شوو، ما ته يې وويل: ای نافع ايا ته څه آروې ؟ ما وويل: نه، نو د عږونو څخه يې ګوتې لرې کړې او وې ويل: زه له رسول صلی الله عليه وسلم سره وم او په شان ددې مو واورېدل نو همداسې مو وکړل.

## ۳- په فقه او د فقهاوو په اقوالو کې د موسيقى حرمت :

په موسوعة الفقهية (هئيت کبار علماء الاسلام) کې راغلي :

ذَهَبَ الْفُقَهَاءُ إِلَى أَنَّ الاسْتِمَاعَ إِلَى الْمَعَازِفِ الْمُحَرَّمَةِ حَرَامٌ، وَالْجُلُوسُ فِي مَجْلِسِهَا حَرَامٌ (موسوعة الفقهية ۱۷۰/۳۸).

د فقهاؤ مذهب دا دی چې د موسيقى اورېدل حرام او د هغه په مجلس کې کيناستل حرام دي.

په فقه اسلامي و ادلته کې راغلي :

يحرم الغناء وسماعه من غير آلة مطربة.

وأما الآلات: فيحرم في المشهور من المذاهب الأربعة (الحنفية والمالكية والشافعية والحنابلة) استعمال الآلات التي تطرب كالعود والطنبور والمعزفة والطبل والمزمار والرباب وغيرها من ضرب الأوتار والنايات والمزامير كلها.

فمن أدام استماعها، ردت شهادته، لقوله صلّى الله عليه وسلم: «ليكونن من أمتي أقوام يستحلون الخمر والخنازير والخز والمعازف» وفي لفظ: «ليشربن ناس من أمتي الخمر، يسمونها بغير اسمها، يعزف على رؤوسهم بالمعازف والمغنيات، يخسف الله بهم الأرض، ويجعل منهم القردة والخنازير» .

واستدلوا على تحريم المعازف من القرآن بقوله تعالى: {ومن الناس من يشتري لهو الحديث ليضل عن سبيل الله } [لقمان:31/6] قال ابن عباس: إنها الملاهي.

وبالمعقول: وهو أن هذه الآلات تطرب، وتدعو إلى الصد عن ذكر الله تعالى وعن الصلاة، وإلى إتلاف المال، فحرمت كالخمر.

يعنې: د موسيقۍ د آلاتو پرته د سندرو اورېدل حرام. او هر چې د موسيقۍ آلات دي حرمت يې په څلورو مذاهبو سره مشهور او د سندرو د آلاتو کارول لکه: عود يو ډول تار لرونكي آله ،طنبور، رباب، طبله، ډول او سورنۍ او نورو ټولو آلاتو کارول حرام دي.

ځوک چې د موسيقۍ په اورېدو هميشوالی کوي شهادت يې د قبول وړ نه دی، په دليل د قول د رسول صلى الله عليه وسلم « ليكونن من أمتي أقوام يستحلون...» او په دليل د دغه حديث « ليشربن ناس من أمتي الخمر...»

او د موسيقۍ حرمت په قرآن سره په دغه قول د الله تعالی ثابت دی چې [ومن الناس من يشتري...]، ابن عباس وايي ددې نه سندرې او موسيقي مراد دي.

معقول قول دا دی چې: د سندرو او موسيقۍ آلات د الله تعالی د ذکر او لمانځه مانع ګرځي او د مال د ضايع سبب دی نو داسې حرام دي لکه خمر (شراب). (فقه اسلامي وادلته – باب حظر و اباحه).

## د ائمه کرامو اقوال :

**عمر بن عبدالعزيز رحمه الله وايي** :«الغناء مبدؤه من الشيطان وعاقبته سخط الرحمن». د سندرو او موسيقۍ پيل کوونکی او بنسټ ايښودونکی شيطان دی او عاقبت يې د الله تعالی ناخوښي او قهر دی.

امام ابی حنيفه رحمه الله وايي: «الغناء من أكبر الذنوب التي يجب تركها فورا» سندرې او موسيقي له هغو لويو ګناهونو څخه دي چې فوري ترک کول او پرېښودل يې واجب دي.

د اسلامي خلافت رئيس قضاء امام ابو يوسف رحمه الله وايي:«إذا سمعتُ الغناء من بيتٍ، فإنّي أدخل عليهم بغير استِئْذان؛ لأنَّ تَغْيير المنكَر واجب، وهذا مُنكَ».كله چې زه د كوم كور څخه سندرې واورم، نو زه به د اجازې پرته هغوی ته ور ننوځم، ځکه چې د حرام کار منع کول واجب دي، او دا يو حرام او منکر عمل دی.

د امام مالک رحمه الله نه روايت دی چې: يو ځل د امام څخه د سندرو او موسيقۍ په اړه چا و پوښتل هغه په ځواب کې وويل: «إنَّما يفعله الفُسَّاق عندنا» زمونږ په نزد دا د فساق او بدکارو خلکو عمل دی.

امام شافعي رحمه الله چې کله له بغداد څخه مصر ته لاړ ويل يې: «خرجتُ من بغداد، وخلَّفتُ شيئًا ورائي أَحْدَثه الزَّنادقة يُسمُّونه التَّغبير؛ لِيَصدُّوا الناس به عن القرآن. وقال: إذا جمع الرَّجلُ النَّاسَ لِسَماع جاريته، فهو سفيهٌ مَرْدود الشَّهادة، وهو بذلك ديُّوث».

زه د بغداد څخه ووتلم شا ته مې داسې شی پرېښودل چې زنديقانو به هغه «التغبير» بللو (د موسيقۍ يو قسم آله) چې د هغه په وسيله به يې خلک له قرآن څخه منع کول.

او هغه ويلي: کله چې سړی خلک د ځوانې ښځې د سندرو اورېدو لپاره را ټول کړي، نو هغه بې عقل دی شهادت يې مردود دی او په دې کار سره هغه ديوث دی.

د امام احمد رحمه الله څخه د موسيقۍ په باره کې پوښتنه وشو، هغه په ځواب کې وويل:«إنَّه ينبت النِّفاق في القلب، كما ينبت الماء البقل». يقيناً هغه په زړه کې نفاق ته داسې وده ورکوي لکه اوبه چې باقليو ته وده ورکوي.

ابن قيم رحمه الله وايي : «فأقل ما يقال: إنَّها شعار الفساق، وشاربي الخمور».

د موسيقۍ د تحريم لپاره ادنا خبره دا ده چې: سندرې او ساز سرود د بدکارو، فساقو او شرابخورو شعار دی.

قال الإمام ابن القيم رحمه الله: "إنك لا تجد أحدا عني بالغناء وسماع آلاته إلا وفيه ضلال عن طريق الهدى علما وعملا، وفيه رغبة عن استماع القرآن إلى استماع الغناء". وقال عن الغناء: "فإنه رقية الزنا، وشرك الشيطان، وخمرة العقول، ويصد عن القرآن أكثر من غيره من الكلام الباطل لشدة ميل النفوس إليه ورغبتها فيه".

او هغه رحمه الله وايي: ته به هيڅ داسې څوک پيدا نه کړې چې هغه د موسيقي اوري خو ددې سره دې د قرآن يو آيت هم آروي، مګر په هغه کې به د حقې لارې څخه د ګمراهۍ طرف ته علماً او عملاً انحراف وي، او هغه به د قرآن د اوريدو پر ځای د موسيقۍ له اورېدو سره مينه او رغبت لري. او وايي: موسيقي د زنا سحر او تعويذ دی، شرک شيطان دی، د عقل نيشه ده، او د ذکر مانع ده او د باطل او شهواتو طرف ته د زړه د ميلان وسيله ده.

او په دې باره کې يې داسې اشعار ويلي :

حـــــب القـــــرآن وحـــــب ألحـــــان الغنـــــا

فـــــي قلـــــب عبـــــد لـــــيس يجتمعـــــان

وإذا تعلـــــق بالســـــماع أصـــــاره

عبـــــدا لكـــــل فـــــلانة وفـــــلان

د قـــــرآن مينـــــه او د غنـــــا مينـــــه دواړه

د بنـــــده پـــــه زړه کـــــې نشـــــي جمـــــع کيـــــدای

او کلـــــه چـــې د موســــــيقۍ تعلـــــق پيــــــدا شــــي

شـــــي بــــــه بنــــــده د هـــــــرې فلانيــــــه او فلانـــــــي

همداسې ده د موسيقي فاحشه رسۍ چې چا غاړې ته کړه بيا به کله د بوې د منې او کله د بل د مينې نغارې ډنګوي او د خپل څښتن (جل جلاله) سره مينه، تعلق او په اخلاص بنده ګې به پاتې يا ډېره ناقصه وي .

پيدا کړي الله تعالی يو ژوندې کړي الله تعالی يو او بيرته مو ورتګ د هغه په لورې دی، دا چې په کور کې موسيقي، په لاره او موټر کې موسيقي، په راديو او تلويزيون کې موسيقي او په موبايل کې موسيقي وي، او ټوله ورځ د الله تعالی پر ځای جانان او ليلا، عشق او عشقبازي يادوئ نو آيا په آخره خاتمه کې به څه يادوئ ؟ د جانکندن پر مهال به څه يادوئ ؟

ابن قيم رحمه الله وايي : يو سود خور ؤ چې د کلمې (لا اله الا الله ) تلکين ته يې هيڅ توجه نه کوله او د ځانکندن پر مهال يې داسې ويل : تسعة بالعشرة (نه پر لس ) .

مه کوئ د دنيا محدود ژوند په لهو لعبو مه تيروئ.

او خپلې آخرې خاتمې ته متوجه شئ او که خدای مه کړه په همدې حال کې مرګ درته راشي نو ستا دمه به ختلې وي او موسيقې به همداسې درته چالانه وي  (اغوذ بالله من ذالک ) .

## د موسيقي اضرار

### ۱- موسيقي په زړه کې نفاق ته وده ورکوي :

**ابن مسعود رضی الله عنه وايي:** ‹ العناء ينبت النفاق في قلب كماينبت الماء الزرع ›› (ابوداود بيهقي).

ژباړه: موسيقي په زړه کې نفاق داسې تازه کوي لکه اوبه چې کښت تازه کوي.

يعنې موسيقي اورېدل د نورو ګناهونو په نسبت داسې ګناه ده چې په زړه کې نفاق را مينځته کوي.

په زړه کې نفاق داسې مرض دی چې ددې په وجه د بنده په زړه کې د اسلامي شعائرو څخه نفرت او له جنسي خواهشاتو او باطلو منکراتو سره علاقه پيدا کيږي، د عبادت په ادا کولو کې سستي او رياء او د درواغو، په وعده وفاء نه کول، خيانت او نور رزيل صفات او اخلاق پکې را مينځته کيږي.

نو پوه شئ چې غناء او موسيقي په زړه داسې اثر کوي چې له ذکر، قرآن، شرعي علم، تدبر او تفکر د نفس د محاسبې څخه سړی غافله کوي او زړه ته رزيل خيالونه ور اچوي نو کله چې زړه فاسد شو ټول بدن په فساد اخته کوي.

### ۲- د الله تعالی د ذکر څخه د زړه غفلت :

موسيقي انسان د شهواني او عشق رانی په خيالونو کې زنګوي چې د الله تعالی د عبادت او ذکر څخه زړه غافله کوي، تلاوت او ذکر خو پر ځای پرېږده چې کله يې د لمانځه او فرضي عباداتو

قضاء کولو او ترک کولو ته هم اړ باسي، په تیره چې د نن زماني فاحشه موسیقي او بیا د هغه سره نڅا هم وي (اغوذ بالله من ذالک).

دا حقیقت تر ټولو واضح او ښکاره دی د هیچا څخه پټ نه دی.

د سفر پر مهال چې کله په سپرلۍ کې موسیقي غږیږي د موټر ټوله سپرلي یې د الله تعالی د ذکر څخه محروم کړي وي.

او کله چې په کوم هوټل او بل ځای کې فاحشه موسیقي او د هغه سره نڅا وي، نو تاسې دوی لیدلي دي چې د لمانځه د ادا کولو لپاره جومات تللي وي ؟ او یا یې پر خپل وخت لمونځ ادا کړی وي ؟

او بس د دوی د نڅا او نخرو فلمبرداري روانه وي.ځکه چې دلته د شیطان حکمراني وي ځکه چې خلک صوت شیطان نیشه کړي وي.

نو کله چې کوم زړه د الله تعالی د ذکر څخه غافله شو، نو دا زړه به دایم سرګرانه او هیڅ سکون به پکې نه وي.

قال تعالی:[وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا] (طه :۱۲۴).

ژباړه: او هر چا چې مخ وګرځاوه له ذکر زما (زما اطاعت یې پرېښود او د خواهشاتو او طاغوت لاره یې غوره کړه) پس یقیناً هغه لره به تنګ او سخت ژوند وي.

ډیرو خلکو چې کله موسیقي ترک کړې ده د ژوند په اصلي سکون او اطمان پوه شوي دي، د زوجینو تر مینځ محبت او ښه سلوک باندې پوه شوي دی او په کور او ژوند کې یې سالمه او روغه فضاء را مینځته شوې ده.

## ۳- موسیقی د زنا له اسبابو څخه ده :

موسیقي د زنا او فاحشو اعمالو د اسبابو داسې یو سبب دی لکه شراب نو ځکه موسیقي د شرابو او زنا سره یو ځای ذکر شوي ده، لکه په دغه حدیث کې: «لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْحِرَ، وَالْحَرِيرَ، وَالْخَمْرَ، وَالْمَعَازِفَ» ژباړه: یقیناً زما په امت کې به داسې کسان پیدا شي چې دوی به د زنا فاحش عمل ،ابریشم ،شراب،ساز او موسیقي حلال بولي.

موسیقي هغه لومړنی صوت شیطان دی چې د بیګانه ښځو او سړیو سره د تعلق جوړلو او عشق بازۍ نغارې وهي، د بیګانه شنه او تور خالونه، تورې سترګې، تور زلفان او د عشق او ناولیې مینې سندرې وایي. په تیره چې نڅا ور سره وي د ویدیو او فلم په بڼه وي.

موسیقۍ لومړی شیطاني دام دی چې شهوت ته حرکت ورکوي، د عشق الهام ورکوي او د فجورو خواته دعوت ورکوي، فضل بن عیاض وایي: (الغناء رقية الزنا).

د سندرغاړو او د هغو د کلکو لارویانو احوال له چا څخه پټ نه دي.

## ۴- د الله تعالی د رحمت څخه لرېوالی :

د موسیقۍ په غبږ باندې د الله تعالی لغت دی، دا ملعون غږ دی، د موسیقي په مجلس باندې د الله تعالی لعنت اوریږي او داسې مجلسونه د الله تعالی د رحمت څخه لرې دي.

«صوتان ملعونان في الدنيا والآخرة، مزمار عند نعمة، ورنة عند مصيبة »

## ۵- د متقیانو پر ځای د فاسقان سره مینه او علاقه :

په مسلمان باندې واجبه ده چې د خپل رب (جل جلاله) او پیغمبر صلی الله علیه وسلم او متقیانو سره مینه ولري.

الله تعالى حکم کړی دی چې تاسې د متقیانو او نیکو خلکو سره ملګري شئ ( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اتَّقُواْ اللّهَ وَكُونُواْ مَعَ الصَّادِقِينَ) [التوبه ۱۱۹) ژباړه: ای مؤمنان له الله څخه وويريږی او له صالحانو خلکو سره ملګري شئ.

## ۶- د محبت په شرک اخته کيدل:

لقوله سبحانه وتعالى: [وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُونِ اللَّهِ أَنْدَاداً يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبّاً لِلَّهِ وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعاً وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ] (سورة البقرة).

ژباړه :او ځينې خلک داسې هم شته چې د الله پرته نور شيان شريکان نيسي او مينه کوي د هغوی سره، له هغوی سره دومره مينه کوي چې بايد يوازې له الله سره شوی وای او مؤمنان له الله سره کلکه مينه لري.

مګر په موسيقى باندې عادت کس له هغو سره مينه لري چې د هغه سندرې يې خوښې وي.

او بلاخره د متقيانو پر ځای د فاسقانو او شيطانانو ملګری شي.

لقوله سبحانه وتعالى:[وَمَنْ يَعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمَنِ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ مُهْتَدُونَ](الزخرف :۳۶-۳۷).

ژباړه: او هغه څوک چه سترګی پټی کړي او ځان ناخبره ونيسي د الله تعالى له ياد څخه نو ورپسی به کړو، او مسلط به کړو په ده باندې شيطان، نو همدا شيطان به يي ملګرې وي، او بيشکه دوئ خامخا اړوي د لارى حقى څخه، او سره له دى ګومان هم کوي چه دوئ ګڼې په سمه لار دي.

## ۷- د موسيقۍ د اورېدونکی شهادت نه قبلیږي:

ذَهَبَ جُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ إِلَى أَنَّهُ لا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْمُسْتَمِعِ لِلْمِزْمَارِ وَتُرَدُّ شَهَادَتُهُ وَتَسْقُطُ عَدَالَتُهُ

(موسوعة الفقهية ۱۰۸/۳۷ حاشيه ابن عابدين ۳۸۴/۴ ).

يعنې: د جمهورو فقهاؤ په نزد د موسيقۍ اورېدونکي شهادت د قبول وړ نه دی او د هغه عدالت له مینځته تللی دی.

## ۸- په موسيقۍ باندې د مال مصرفوونکي د شيطان ورونه دي :

څوک چې ډمان راولي سندې وربانديې وايي اجرت ورکوي، يا د موسيقي سامان اخلي دا مال په حرامو کې لګول شوی مال دی او په حرامو کې د مال لګولو ته «تبذر» وايي.

لقوله سبحانه وتعالى: (ولا تبذر تبذيراً، إن المبذرين كانوا إخوان الشياطين) [سورة الإسراء /۲۶-۲۷)

ژباړه: او اسراف مه کوئ په اسراف کولو سره، يقيناً اسراف کونکي د شيطان ورونه دي.

او د قيامت په ورځ به پوښتنه ورڅخه کيږي چې مال دې په څه کې لګولی وو.

## ۹- د ګناه د پيټي درنيدل :

د موسيقي اورېدل پخپل ذات کې ګناه او د هغه سربېره د نورو ګناهونو سبب کيږي، هر ورځ يو ساعت يا څو ساعته يا هر ورځ او بلاخره ټول عمر اورېدلو ګناه يې په عمل نامه کې ليکل کيږي، او سړي ته به دغه ګناه عادي او نا لړ ځرګنديږي خو يو وخت به داسې سرحد ته رسيدلی وي چې وزن به يې تر ښو او نيکو کارونو اوښتی وي.

[فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ * فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ * وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ * فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ] (القارعة :۶-۹ ) .

## د خلاصون لارې

وروڼو او خویندو! اوس مو چې د موسیقي حرمت او د هغه اضرار وپیژندل تاسې ته د هغه څخه د خلاصون په ځینې لارو باندې وصیت کوم هیله ده چې کلک عزم وکړئ او د دغه سترې بلاء څخه ځان خلاص کړئ.

۱- خپل څښتن (جل جلاله) ته د نصوح توبه وکړې، په تیر وخت پیښمانتیا او توبه او د هغو فوراً ترک کول او د آینده لپاره د هغه د ترک کلک عزم کول او د ګناه په ترک باندې صبر اخیارول.

۲ - د سندرو او موسیقی ټول مواد له موبایل، کمپیوټر او کور څخه ایستل او د هغه له مینځه وړل او د ناچارۍ په صورت کې د اسلامي اناشیدو اورېدل.

۳- پنځه وخته لمونځ په جماعت ادا کول ځکه کامل لمونځ سړی له بدو کارونو ساتي او د لمانځه کمال په جماعت سره ادا کول دي او د ښځې لپاره په خپل وخت لمونځ سره له ټولو احکامو.

۴- ډیر ډیر استغفار لوستل ځکه چې استغفار د ګناهونو اثر له مینځه وړي او بدن پاکوي.

۵- هر وخت او په خاص توګه د سباء او بیګا اذکار لوستل ځکه چې د اذکارو ویلو په وجه شیطان لرې کیږي او د خیر لپاره سینه پراخه مومي.

۶- د فاسقو خلکو ملګرتیا پرېښودل او د هغه پر ځای د نیکو او صالحو ملګرتیا او د ذکر، علم او خیر په مجلس کې برخه اخیستل.

۶- د مشهورو قاريانو د قرآن تلاوت ته غوږ نيول کوم چې په ښه اواز خشوع او خضوع سره تلاوت کوي په خاصه توګه د (محمد البراک ، شيخ ادريس أبکر او محمد انور الشحات) تلاوت ته غوږ نيول.

۷- د پيغمبرانو عليهم السلام، صحابه کرامو او د امت د صالحو کسانو قصص لوستل او د هغوی د ژوند څخه عبرت اخيستل.

۸- په تنهايي کې له ځان سره محاسبه کول، د تير وخت په بدو کارونو پښېمانتيا او بيا د الله تعالی له ويرې او د بې حسابه نعموتو په شکرانه خپلې اوښکې تويول..... او په داسې سترګو به د دوزخ اور حرام وي.

۹- د هدايت دعا او د ټولو رزائلو څخه د خلاصون دعا او د تقوی او په ايمان باندې د ثبات دعا غوښتل.

په آخر کې د ځان او ټولو مسلمانانو ورونو او خويندو لپاره دعا کوم چې ای الله ! مونږ د دغه ديني او اخلاقي وباء څخه خلاص کړې، فاسقو، رزيلو او فاني سندرو پر ځای مو ستا د کلام قرآن سره مينه پيدا کړې.

## د ټېلويزيوني او راديويي خپرونو ګټه او زيان

اوسني الکتروني وسائل لکه: تلويزيون، راډيو، تيلفون او انټرنټ په خپل ذات کې مباح وسائل دي چې د خير لپاره کارول يې لوی خير دی او د شر لپاره کارول يې ستر شر او بربادي را مينځته کوي.

په کم مصرف او لږ کار سره تر ډېرو خلکو پورې سړی د خير او اصلاح خبره او د خير دعوت رسولی شي.

همداسې که د شر لپاره وکارول شي نو ډېر خلک به د هغه د شر او ضرر سره مخ شي.

او بيا په دغو وسائلو کو تر ټولو مهم يې تيلويزيون او راډيو ده چې هر څوک کولای شي هغه په آسانی سره تر لاسه کړي.

متأسفانه زمونږ په هيواد کې اکثره دغه وسائل د کفري اشغال او يا هم فاسقو عناصرو په لاس کې دي چې سختې زهرجنې خپرونې کوي.

### د غربي او کفري سريالونو ضرورونه :

دا شيطاني زهرجنې خپرونې د هر مسلمان او هرې مسلمانې کورنۍ په عقيدوي او اخلاقي تربيه سخت بد اثر لري چې اوس مهال يې په ټولنه کې بد اثرات هر چا ته څرګند دي او څوک چې يو زره ايمان او عقل لري هغوی ورباندې قانع دي چې دا خپرونې واقعاً خطرناکې پايلې لري چې ددې زهرجنو خپرونو ځينې اضرار په لاندې ډول دي :

١- د هندي، ترکي او نورو سريالونو او ډرامو له لارې په پوره چل او فريب سره په اسلامي ټولنه کې د نصرانيت، يهوديت او بوديزم عقائد خپرول.

۲- د سریال، ډرامې، اعلان او تبلیغاتو له لارې په اسلامي ټولنه کې د رزیلو او فاسدو اخلاقو خپرول.

۳- په خلکو کې د بیګانه نارینه او ښځو کډ ژوند، بې حجابي، فحشاء او موسیقي رواجول.

۴- خلک په وړو مسائل مصروف ساتل او د سترو قضاوو څخه د هغوی غافله کول. مثلاً: د درس او تعلیم پرځای، لوبو او ورزش ته دومره وده او تبلیغات چې بلاخره ټول وربانديې مصروف شي.

۵- خاوند ته د ښځې پرېښودلو درس ورکول او همدارنګه ښځې ته د خاوند څخه د بغاوت درس ورکول، کورنی نظام خرابول او د زوجینو تر مینځ د اعتماد او اطمنان ختمول.

۶- په اسلامي ټولنه کې سمت پرستۍ، قوم پرستۍ او ژب پرستۍ ته زمینه برابرول.

۷- د فاسقانو اظهار او د متقیانو لرې ساتل، ددغو شیطاني مډیا په پردو اکثراً هغو کسانو ته موقع ورکول کیږي چې هغوی ښکار فساق، په ټولنه کې منکرات او فساد خپروي، په غلا چور او غصب او ظلم مشهور وي.

۸- په اسلامي ټولنه کې شیطاني اقصتادي بازار رواجول، سودي ادارو ته تلبیغات کول او په ټولنه کې د سود، قمار اقتصادي احتکار او انحصار رواجول.

ځکه ډیر کسان چې علم او پوهه نلري او یا د دوی منافقت او فساد ته متوجه نه وي هغوی فکر کوي چې څه د تیلویزون له صفحې خپریږي هغه به نو مباح وي او څه باک به نلري (الغاذ بالله)، خلک په چل او فریب په ګناه او فساد اخته کول. او د اسلام په خاوره کې په پوره جرأت سره خلک د ګناه او فساد لورې ته بلل.

۹- په سترګو د منکر ليدل او د هغه څخه انکار او کرکه نه کول. چې د ګناه او منکراتو څخه کرکه او نفرت د ايمان ورستی درجه ده. يعنې سره له دې چې ډير د دغو شيطاني مډيا په اضرارو پوه دي خو بيا هم د خپلې کورنۍ سره يو ځای د هغه ننداري کولو ته ناست او د کور مشر او مسئول د دغه فساد پر وړاندې خپل سقوط اختيار کړی وي.

۱۰- ټول وخت د فکر مشغول ساتل ځکه ځينې ډرامي او سريالونه زيات وخت نيسي د هغه د مسلسل ليدلو او تعقيب په فکر کې وي.

۱۱- د درس په زده کړه، کورني کار او درسي مسئوليتونو کې پاتې راتلل.

۱۲- د ماشومانو په خوب کې ډاريدل ځکه چې ځينې صحنې ماشومانو ته بدي وي او د نجونو او ځواناتو د آينده ژوند په اړه سوچونه او تشويشونه پيدا کيدل ځکه چې دغه سريالونه د کفري ټولنو انعکاس کوي او په کفري ټولنه کې کورنۍ نظام پاشل شوی وي د زوجينو د محبت پر ځای د بيګانه سره د ملګری سيستم کارول کيږي، او د دغو صحنو ليدل په مسلمانه پيغله او مسلمان ځوان سخت بد اثر کوي.

۱۳- د بيګانه نارينه او ښځو تر مينځ د عشقي قصو بيانول، نجونو او ځوانانو ته د واده مخکې د عشق، اختلاط، د بيګانه سره ملګري او ارتباط درس ورکول او د ذهن څخه يې د پاک اسلامي با عفطه او پاکدامنه ژوند ايستل.

۱۴- د اسلامي اخلاقو، مينې محبت او ورورولۍ پر ځای د ماشومانو په ذهن کې د جنګ، قتل، وهلو او په قهر او غصه کيدو درس ورکول ځکه جنګي فلمونه، د وهلو او ټکولو جاهلانه لوبې او ورزش کوچنيو ماشومانو ته همدا پيغام رسوي.

۱۵- په اسلامي ټولنه کې د کفري دود او رواج خپرول ځکه چې د غربي درامو او سريالونو څخه لباس، اخلاق، بې حجابي او نور سلوک او فوچ عادات زده کوي.

۱۶- د سريالونو بل ستر هدف دا دی تر څو په خلکو کې خصوصاً په ځوانانو او نجونو کې شهوت خپور کړي او دوی د شهوت رانۍ او شهوت پرستۍ باندې وروزل شي او د حيا او غيرت، مړانې جذبه يې ورختمه کړي.

لکه د نصرانيت يو مبلغ چې خپلو ملګرو ته د بيان په يو برخه کې وايي:

مونږ د مسلمانانو داسې نسل برابر او چمتو کړی چې استعمار د هغه په انتظار کې دی، داسې نسل چې د سختۍ په وړاندې مقابله نشي کولای، بې پروا،راحت طلبه اوټمبل دی کچيرې کوم لوړ مقام او مرتبه تر لاسه کړي د عيش او شهوت پرستۍ له کبله کومه د ځوانمردۍ سخا نلر ي (مسيحيت و پيژنئ ، دراسات في الاديان ص ۳۸۳).

۱۹- په ټولنه کې د مخدراتو او په خاصه ټوګه خمر (شرابو) رواجول.

۲۰- د وخت ضايع کېدل، انسان دنيا ته د يو ستر هدف لپاره راغلی دی چې هغه د الله تعالی عبادت دی (په ټولو چارو کې د الله تعالی فرمانبرداري کول) او دې دنيا ته بيا راتلل نشته. دوهم چانس، دريم چانس نلري، که چا د اسلامي شريعت موافق ژوند تر سره کړ کامياب او که د هغه مخالفت يې وکړ نامراد دی.

۲۱- منکراتو، ګناهونو او فساد ته رسمي بڼه ورکول. عام خلک داسې فکر کوي چې څه د تيلويزون او يا راډيو له شيطاني صفحو خپريږي، کيدای شي هغه مباح وي څه باک ونلري (الغاذ بالله) ځکه هغوی ګمان کوي چې دا شيان خو د وخت د رژيم له سلطې لاندې تر سره

کیږي، خبر نه دي چې په دې کې د اشغال ستر اهداف پراته دي هغه دا چې غواړي قصداً پر ځمکه کې فساد خپور کړي او خلک په ګناهونو او فساد اخته کړي.

۲۲- د اسلامي شعائرو او ملي کلتور سپکاوی، د ډرامو او تبلیغاتو په ځینې صحنو کې ږیره، لګوټه او افغاني لباس واله کس مجرم ښودل او د نیکتایي او درشي او غربي ماډل واله کس ښه او صالح ښکاره کول.

۲۳- د اسلامي شریعت په احکامو لکه: حجاب، دیني عالم، اسلامي اخلاقو او آدابو ملنډې وهل.

۲۴- د کفارو او منافقینو او فاسقانو جرمونه پټول او یا کم معرفي کول او د مسلمانان کوچنی جرم او خطاء ستر ښودل او معرفي کول.

۲۵- په اخبارو کې درواغ ویل، پر خلکو بهتان لګول، او پر ځینې ډرامو او پروګرامونو کې پر خلکو باندې ټوکې او منډې وهل.

۲۶ – د صحي، تعلمي او ګټورو پروګرامونو پر ځای د لهو، لعبو او عبثو شیانو خپرول .

۲۸- د عام خلکو د غلولو او تیرایستلو لپاره د ځینې مذهبي پروګرامونو ځای پر ځای کول. تر څو عام خلک وربانديې وغلوي چې پر دغه تیلویزون او راډیو کې خو دیني خپرونې لکه: څه د قرآن تلاوت او یا د ملا لخوا د دیني پوښتنو ځوابول او داسې نور تر څو ددې په وسیله د خلکو غبرګون او مخالفت کم کړي

لکه چې یو تیلویزون خپله داسې اعتراف کوي :

شیوهٔ آزاد این تلویزیون در پخش موسیقی در اوایل موجب بروز مخالفت‌هایی در محافل مذهبی افغانستان گردید بطوریکه برای مثال پس از افتتاح فرستنده زمینی این تلویزیون در شهر هرات جمعی از نماز گزاران در مسجد جامع هرات به گفته خودشان برای غروب تلویزیون

؟؟ دست به دعا برداشتند. پس از ماجرای محکوم شدن تلویزیون ؟؟ که خلاف اصول اسلامی تشخیص داده شد، بیشتر شبکه‌های خصوصی افغانستان اقدام به خودسانسوری ی برنامه‌های خود کردند و تلویزیون ؟؟ نیز از این قائده مستثنا نبود.

اخیرا تلویزیون ؟؟ اقدام به پخش برنامه‌ای مذهبی کرده‌است تا حدودی از مخالفت‌ها بکاهد اگرچه شدت مخالفت‌ها نیز کم شده و مخالفین این تلویزیون تا حدودی با شرایط جدید رسانه ای افغانستان کنار آمده‌اند.

اوس چې چا ته د دغو شيطاني ورکشاپونو د زهرجنو خپرونو يادونه وکړې، نو هغوی د خپل دليل د پاره وايي: په هغه کې ځينې ديني او مذهبي خپروني هم شته، د قران قرائت هم شته.

مسلمانانه وروره ! دغه لږ لږ مذهبی خپروني يې ستا د غلولو لپاره ځای پر ځای کړي دي که نه هغه اصلاً ستا د دين او کلتور نړول غواړي

۲۹- د ذکر، عبادت او ديني واجباتو ترک، ځينې کسان چې په ډرامه او مسلسل سريال سره او ګرم راشي نو بيا جماعت هم ورځخه فوت شي او د شپې تر ناوخته پورې ناسته وي بلاخره خوب ورباندې ورشي او بې لمانځه بيده شي او بيا د سهار لمونځ هم ورځخه قضاء شي.

پورته ټکې د مشت نمونه خروار په ټوګه بيان شول نور دا تر لمر واضح خبره ده

مسلمانانه وروره د کورنۍ مسئوله ! دا څرګند حقيقت دی چې هيواد مو د کفارو لخوا اشغال شوی دی هر ډول فتنو او منکراتو ته ښه زمينه مساعده ده، خو واورئ چې د الله تعالی د جانبه پر مونږ باندې امتحان دی، مسلمان د خپلې کورنۍ پر وړاندې مسئول دی

ښايې چې خپل ځان او خپل اهل عيال د دوزخ د اور څخه بچ کړي.

ځکه الله تعالی فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَاراً]

ژباړه: ای مؤمنانو خپل ځانونه او خپل اهل عيال مو د دوزخ له اوره وساتئ.

که د الله تعالی رضا او د اور څخه نجات غواړئ نو بيا صبر وکړئ او له ناروا امرو څخه پرهيز وکړئ.

په دې کې شک نشته چې ټول ناروا کارونه څه مؤقتي خوند لري خو ګورئ پايلې يې ډير خطرناکې دي.

چا چې د ناروا کارونو څخه ځان وساتلو الله تعالی به هغه ته په دنيا کې مطمئن او خوشحاله ژوند ورکړي په آخرت به يې له سخيو وژغوري او د الله تعالی لوی مېلمستون (جنت) ته به داخل شي.

*نَحْنُ أَوْلِيَاؤُكُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِي أَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ [ )فصلت: ۳۰، ۳۱).

ژباړه: مونږ په دنيا کې ستاسې دوستان يو او په آخرت هم او په جنت کې به تاسې ته ټول هغه څيزونه وي چې تاسې يې هيله وکړئ او ټول هغه څه به مو په مخکې وي چې تاسې يې وغواړئ.

## تصويرونه او فلمبرداري

### تعريف:

تصوير په لغت کې د صورت او عکس جوړولو ته وايي په اصطلاح کې عکس د يو شي داسې کيفيت دی چې د بل شي سره يې فرق کيږي او يا عبارت له داسې کيفيت څخه دی چې د شي څېره او شکل داسې پکې څرګنديږي لکه چې همغه شي ته ګوري.

### د تصوير حکم :

تصويرونه د حکم له مخې په مباح (جايز) او حرام ويشل شوي دي

### اول – مباح تصويرونه :

۱- د انسان د ټولو جوړ کړو شيانو ترسيم جايز دی لکه: د کور تصوير، د موټر، الوتکې، کښتۍ، جومات او نورو.

جاء في موسوعة الفقهية (هيئت کبار علماء الاسلام ):

لا بَأْسَ بِتَصْوِيرِ الأَشْيَاءِ الَّتِي يَصْنَعُهَا الْبَشَرُ، كَصُورَةِ الْمَنْزِلِ وَالسَّيَّارَةِ وَالسَّفِينَةِ وَالْمَسْجِدِ وَغَيْرِ ذَلِكَ اتِّفَاقًا ؛ لأَنَّ لِلإِنْسَانِ أَنْ يَصْنَعَهَا، فَكَذَلِكَ لَهُ أَنْ يُصَوِّرَهَا (موسوعة الفقهية ۱۲/۹۸ ).

۲- د اهل علم په اتفاق د جماداتو لکه: غرونه، بحرونه، لمر، سپوږمۍ، آسمان او ستورو تصويرونه جايز دي همدارنګه د نباتاتو تصويرونه لکه: ګيا، شنه بوټي، ونې، ميوجات، بارداره ونې او د غير بار دارو ونو تصويرونه ايستل جايز دي.

جاء في موسوعة الفقهية :

لا بَأْسَ بِتَصْوِيرِ الْجَمَادَاتِ الَّتِي خَلَقَهَا اللَّهُ تَعَالَى - عَلَى مَا خَلَقَهَا عَلَيْهِ - كَتَصْوِيرِ الْجِبَالِ وَالأَوْدِيَةِ وَالْبِحَارِ، وَتَصْوِيرِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ وَالسَّمَاءِ وَالنُّجُومِ، دُونَ اخْتِلافٍ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ.

جُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ عَلَى أَنَّهُ لا بَأْسَ شَرْعًا بِتَصْوِيرِ الأَعْشَابِ وَالأَشْجَارِ وَالثِّمَارِ وَسَائِرِ الْمَخْلُوقَاتِ النَّبَاتِيَّةِ، وَسَوَاءٌ أَكَانَتْ مُثْمِرَةً أَمْ لا، وَأَنَّ ذَلِكَ لا يَدْخُلُ فِيمَا نُهِيَ عَنْهُ مِنَ التَّصَاوِيرِ (الموسوعة الفقهية ١٢/٩٧-٩٩).

همدارنګه د ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت نقل شوی دی چې: «إِنْ كُنْتَ فَاعِلا فَصَوِّرِ الشَّجَرَ وَمَا لا رُوحَ فِيهِ قَالَ لا يَحْرُمُ تَصْوِيرُ الشَّجَرِ وَالنَّبَاتِ وَمَا لا رُوحَ فِيهِ (فتح الباري ١٠ / ٣٩٤ ، والطحطاوي على الدر المختار ١ / ٢٧٤ ).

يعنې: کچېرې ته دا کار کوې نو د ونې او هغه څه تصوير وباسه چې روح پکې نه وي، او وايي: د ونو او نباتاتو او هغه چې روح پکې نه وي تصوير ايستل حرام نه دي.

## دوهم – حرام تصويرونه :

د ساه لرونکو تصويرونه لکه: انسان، حيوان او مرغه تصويرونه مطلق حرام دي هغه که د مجسمې په شکل وي، د ترسيم په شکل وي او يا د عکاسې د چاپ په شکل وي.

د دغه تصويرونو څخه ضروري تصويرونه کوم چې د ضرورت لپاره وي لکه: تذکره، پاسپورت او نور د معاصرو فقهاؤ په نزد مستثنى دی، ځکه چې د فقه قاعده ده چې: «ان الضروريات يبيح المحضرات ».

جاء في موسوعة الفقهية و الطحاوي على الدرالمختار :

يَحْرُمُ تَصْوِيرُ ذَوَاتِ الأَرْوَاحِ مُطْلَقًا، أَيْ سَوَاءٌ أَكَانَ لِلصُّورَةِ ظِلٌّ أَوْ لَمْ يَكُنْ. وَهُوَ مَذْهَبُ الْحَنَفِيَّةِ وَالشَّافِعِيَّةِ وَالْحَنَابِلَةِ. وَتَشَدَّدَ النَّوَوِيُّ حَتَّى ادَّعَى الإِجْمَاعَ عَلَيْهِ. وَفِي دَعْوَى الإِجْمَاعِ نَظَرٌ يُعْلَمُ مِمَّا يَأْتِي. وَقَدْ شَكَّكَ فِي صِحَّةِ الإِجْمَاعِ ابْنُ نُجَيْمٍ كَمَا فِي الطَّحْطَاوِيِّ عَلَى الدُّرِّ.

(موسوعة الفقهية ج ١٢/ص ١٠٢ ،الطحطاوي على الدر المختار ١ / ٢٧٣).

د ساه لرونکي د تحريم دلايل په لاندې ډول دي :

**لومړی حديث:**

ابن عمر وايي: پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايلي:

« إِنَّ الَّذِينَ يَصْنَعُونَ هَذِهِ الصُّوَرَ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، يُقَالُ لَهُمْ: أَحْيُوا مَا خَلَقْتُم (رواه البخاري و مسلم).

ژباړه: د قيامت په ورځ هغو کسانو ته چې دا تصويرونه جوړوي عذاب ورکول کيږي، هغوی ته ويل کيږي ژوندي کړئ هغه څه کوم مو چې جوړ کړي وو).

**دوهم حديث :**

عبدالله ابن مسعود وايي: له پيغمبر صلی الله عليه وسلم نه مې وارويدل چې فرمايل يې:

إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمُصَوِّرُونَ» (رواه البخاري و مسلم).

ژباړه: د قيامت په ورځ له خلکو څخه سخترين عذاب د تصوير جوړونکو دی.

**دريم حديث :**

عايشه رضی الله عنه وايي: پيغمبر صلی الله عليه وسلم له سفر څخه راغی او ما په طاق باندې يوه پرده ځړولې وه چې په هغه باندې د (ساه لرونکي) تصوير ؤ، کله چې پيغمبر صلی الله

عليه وسلم هغه وليده د مخ مبارک رنګ یې بدل شو او ویې فرمایل: «يَا عَائِشَةُ، أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يُضَاهُئونَ بِخَلْقِ اللَّهِ» (رواه البخاري ومسلم)

ژباړه: ای عایشې ! د قیامت په ورځ له خلکو څخه سخترین عذاب هغو کسانو ته ورکول کیږي چې دوی کوښښ کوي د الله تعالی د خلقت په مثل شی جوړ کړي).

**څلورم حديث :**

ابن عباس رضِي اللَّهُ عنْهما روایت کوي چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي: «مَنْ صَوَّرَ صُورَةً فِي الدُّنْيَا كُلِّفَ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا الرُّوحَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَلَيْسَ بِنَافِخٍ » (رواه البخاري و مسلم).

ژباړه: څوک چې په دنیا کې تصویر جوړوي هغه د قیامت په ورځ کې د هغه په روح اچولو مکلف کیږي حال داچې هغه د روح د اچولو توان نه لري).

**پنځم حديث**

له ابن عباس رضي الله عنهما روایت شوی دی چه پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي: «كُلُّ مُصَوِّرٍ فِي النَّارِ يَجْعَلُ لَهُ بِكُلِّ صُورَةٍ صَوَّرَهَا نَفْسًا فَتُعَذِّبُهُ فِي جَهَنَّمَ»

ژباړه: هر تصویر جوړونکی په دوزخ کې دی (کچېرې توبه ونباسي)، په هر شکل یې چې جوړ کړی وي هغې ته به د روح شکل ورکړ شي او د هغه په وسیله به هغه ته په دوزخ کې عذاب ورکوي .

پورته ټول احادیث د ساه لرونکو تصویرونو پر حرمت دلالت کوي مګر د ونې، سیند، غره او دې ته ورته نور بې ساه شیانو چې ابن عباس رضی الله هغه ته اشاره کړې ده او نورو صحابوو په هغه باندې اعتراض نه دی کړئ باک نه لري.

وبالله التوفیق. و صلي الله علي نبينا محمد و آله و صحبه و سلم

## د بې شرمه فاحشو تصويرونو حکم :

د ساه لرونکو تصويرونو حرمت په تفصيل سره ذکر شو چې د ساه لرونکو تصويرونه ايستل پخپل ذات کې حرام دي.

مګر که دا تصويرونه د فتنې جوړېدو، فساد او بداخلاقۍ سبب کيږي نو د تصوير د حرمت او ګناه سربيره به په ټولنه کې د فتنې، فحشاء او بداخلاقۍ خپرول وي، لکه: په ځينې مجلو، تجارتي اعلاناتو باندې د ښځو او سړيو لوڅ او نيمه لوڅ تصويرونه نصبول او خپرول چې د سړي وجدات د هغه څخه شرم کوي.

دغه تصويرونه په ټولنه کې لويه بې شرمي، بې حيايي او فتنو، فساد او فحشاء ته زمينه برابرول او دا اکثراً په هغو هيوادو، ښارونو او محلاتو کې تر سترګو کيږي کوم چې د غرب د ناولې شيطاني ډيموکراسۍ غبار وهلي وي.

## د تحريم دلائل :

۱- په حديث شريف راغلي دي چې: «لاتباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها، كأنَّه ينظر إليها» (البخاري).

ژباړه: ښځه به د بلې ښځې سره لوڅ بدن يا کوم اندام نه نښلوي او د هغې صفت به خپل خاوند ته نه بيانوي ګواکې دا داسې دی لکه خاوند يې چې د هغې ښځې طرف ته نظر کوي.

او بيګانه نيمه لوڅو عکسونو ته کتل په طريقه اولی حرام دي.

۲- ښځې او نارينه ته د ټاکل شوې عورت پټول فرض دي او د بل عورت ته کتل حرام دي.

د ښځې ټول بدن عورت دی نو د هغې لپاره واجب ده چې د نامحرمو څخه ټول ځان پټ کړي

د مذاهبو د جمهورو فقهاؤ په نزد د ښځې ټول بدن د بيګانه پر وړاندې عورت دی پرته له لاسونو او قدمونو او د مخ پټول د فتنې له وجې په حجاب کې شامل دي.

او د ښځو تصويرونه اخيستل مطلق حرام دي ځکه چې په دې کې فتنه او شر دی

د بيګانه ښځې اصلي عورت او د هغه تصوير ته کتلو کې فرق نشته او دواړه حرام دي، ځينې معاصر فقهاؤ وايي چې تر اصلي نظر تصوير خطرناک دی ځکه نظر د لږ وخت وي او جنسي تصوير څخه زياته استفاده کولای شي چې فتنه يې زياته ده.

جاء في موسوعة الفقهية (هيئت كبار علماء الأسلام) :

ذَهَبَ جُمْهُورُ الْفُقَهَاءِ إِلَى أَنَّ جِسْمَ الْمَرْأَةِ كُلَّهُ عَوْرَةٌ بِالنِّسْبَةِ لِلرَّجُلِ الأَجْنَبِيِّ عَدَا الْوَجْهَ وَالْكَفَّيْنِ ؛ لأَنَّ الْمَرْأَةَ تَحْتَاجُ إِلَى الْمُعَامَلَةِ مَعَ الرِّجَالِ وَإِلَى الأَخْذِ وَالْعَطَاءِ  لَكِنْ جَوَازُ كَشْفِ ذَلِكَ مُقَيَّدٌ بِأَمْنِ الْفِتْنَةِ. وَوَرَدَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ الْقَوْلُ بِجَوَازِ إِظْهَارِ قَدَمَيْهَا ؛ لأَنَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى نَهَى عَنْ إِبْدَاءِ الزِّينَةِ وَاسْتَثْنَى مَا ظَهَرَ مِنْهَا. وَالْقَدَمَانِ ظَاهِرَتَانِ ، وَيَقُولُ ابْنُ عَابِدِينَ: إِنَّ ظَهْرَ الْكَفِّ عَوْرَةٌ ؛ لأَنَّ الْكَفَّ عُرْفًا وَاسْتِعْمَالا لا يَشْمَلُ ظَهْرَهُ . (موسوعة الفقهية ٢٢/١٦ ،بدائع ٢٩٥٦/٦، حاشيه ابن عابدين ٤٠٥/١).

و جاء في فتاوي الاسلام سوال جواب :

قوله تعالى: (قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ. وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ...) (النور/ 30، 31).

ولا فرق بين مشاهدة المرأة الأجنبية على أصل خلقتها، أو على صورة ثابتة، أو متحركة، أو كانت رسوماً يدوية، فكيف إذا كان المشاهَد هو عورات ! ومشاهد جنسية مثيرة ؟!.

و جاء في فتاوى الجنة الدائمة (هيئت كبار علماء) :

والمرأة كلها عورة في ظاهر أدلة الكتاب والسنة، فالواجب عليها ستر جميع بدنها عن غير محارمها ؛ لقول الله تعالى: (وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ) النور/31 ؛ وقوله سبحانه: (وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ) الأحزاب/53.

قولَه: تصوير النساء لا يجوز مطلقاً لما في ذلك من الفتن والشرور التي ترتب عليه زيادة على تحريم التصوير في حد ذاته، فلا يجوز تصوير النساء للسفر ولا لغيره، وقد صدر عن هيئة كبار العلماء قرار بتحريم ذلك انتهى.

ولا يُعذر الزوج بتصوير زوجته وهي عارية لكونه زوجاً، فهذا لا يبيح له ذلك الفعل القبيح، ولا يعد غيابه عن زوجته عُذراً له ؛ لحرمة تصوير النساء ابتداءً – وقد ذكرنا فتاوى العلماء في ذلك - ؛ ولما يمكن أن يترتب على ذلك من مفاسد، ومما يمكن أن يترتب على الاحتفاظ بصورة الزوجة وهي عارية، أو غير محتشمة: "فتاوى اللجنة الدائمة" (1 / 718، 719).

### د ودونو او نورو محافلو فلمبرداري :

دنكاح په مجالسو او خصوصاً هوټلونو کې د نارينه او ښځو، ډمانو او اتڼ چيانو تصويرونه او فلمبردارئ تر سره کيږي چې دا عمل يې تر ټولو ستر منکر او فحشاء ده ځکه ددې فلمونو څوک ضمانت کولای شي؟ چې نورو خلکو ته به نه رسيږي چې وروسته به دا د يوه فلم په حيث کارول کيږي، د نامحرمو نارينه او ښځو سيل به پکې کيږي، په داسې شان چې يو کس به يې له خپل ناموس نه خبر نه وي خو د ده د ښځې فلمونه به په نورو کورونو کې کتل کيږي.

ددې فلمبردارى او موسيقى لپاره چې هر چا ډمان او عكاسان راوستلي وي څو پورې چې ددې فلم څخه استفاده كيږي ګناه به يې د ده پر غاړه وي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«دعا إلى ضلالة، كان عليه من الإثم مثل آثام من تبعه، لا ينقص ذلك من آثامهم شيئا» (مسلم ۲۶۷۴)

ژباړه: او چا چې خلک د يوى ګمراهى طرف ته دعوت كړل نو د دغى ګناه به هومره ګناه وي چې كوم ګناه كونكى د ده د ګمراه كونكى عمل په وجه بې لارى شوي او ګناه كار شوي وي او د دغه خلكو په ګناه كې به هم كوم كمى نه راځى.

او په دې فاحش كار لګول شوى مال تبذير دى .

او څوک چې قصداً دا بې شرمي رواجوي دغو بې شرمۍ ته دعوت كوي او غواړي چې په خلكو عامه شي نو د هغوى لپاره په دنيا او آخرت كې سخت عذاب دى.لقوله سبحانه وتعالى: « إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ » [النور :1]

ژباړه: كوم كسان چه غواړي د مسلمانانو په ډله كې فحشآء خوره كړي شته دغو (كسانو) ته په دنيا او آخرت كې سخت دردوكى عذاب.

## په هر كور او حيب كې پټه بلاء :

نن د هر ځوان، نجلۍ او هر چا سره كامره لرونكى، صوت او ويديو لرونكى موبايل او آى فون موجود دي، بې ځايه تصويرونه ورباندې اخلي هر يو نن عكاس جوړ شوى او د هر چا په جيب او كور كې كمره موجوده ده چې د تصويرونو حرمت او وعيدونه مخكې بيان شول، كله بيا لويي

فتنې ته لاس اچوي په ودونو، لارو او کوچو کې په ښکاره يا پټه د بيګانه ښځو او هلکانو تصويرونه اخلي چې لويه بې شرمي او فحشاء ده، او کله ددې لارې تجسس کوي.

### د خپلو کورونو څارنه وکړئ او په لوی لاس يې مه بربادوئ

يو بقال چې د کابل له منډوي څخه کمپلې وړي او بيا يې په اطرافي کليو او قريه جاتو کې خرڅوي، له هغه څخه چا پوښتنه وکړه چې آيا په دغه عمل کې ستا څه ګټه شته ؟

بقال وايي: په دې کار کې دومره ګټه نشته، مګر زه ددې تر څنګ بل کار تر سره کوم چې په هغه کې زما لپاره زياته ګټه ده.

بقال زياتوي: زه په (۵۰) يا (۱۰۰) افغانۍ د موبايل ميموري (حافظه) اخلم بيا هغه له جنسي فلمونو څخه ډکوم او بيا دا ميمورۍ هر يوه يې په (۱۰۰۰) افغانۍ په نجونو او پيغلو خرڅوم، او زما په دې کار کې ډېره فائده ده، کله چې په دوی باندې دغه فلمونه په پټه توګه د کمپلو خرڅولو په بهانه خرڅوم نو هغوی زما څخه خوښې وي .... دا قصه پرون د جومات امام را ته وکړه چې هغه ته په منډوي کې يو عمده فروش کړې وه او ستاسې سره يې ددې لپاره شريکوم چې ددې پټو بلاوو څخه خبر شئ.

### ددې قصې څخه عبرت :

۱ -نجونو او هلکانو او ښځو ته د پرمختللو موبايلو اخيستل او هغوی ته يې په واک کې ورکولو ثمره به همدا وي ځکه اکثراً ځوانانو او نجونو ته چې دا ډول شرايط مساعد شي هغوی به خامخا د بې شرمه او فاحشو فلمونو کتلو ته لاس اچوي ځکه چې د هغوی عقل او فکر کمزوری او اکثراً پوره ديني معلومات نلري ... او بلاخره ددې تماشا پايلې به ډېرې خطرناکې وي

او په دې کې به د هغوی مشر او مسئول شریک وي ځکه چې دا شرایط د هغه لخوا ورته مساعد شوي.

که نور هیڅ نه وي د تصویرونو اخیستل او د موسیقي اورېدل خو هسې هم په اوسني تېل شوي سکولار کې رسمي بڼه لري، نو آیا تاسې څه فکر کوئ چې دا واړه ګناهونه دي.

»إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمُصَوِّرُونَ) (متفق علیه)

ژباړه: د قیامت په ورځ به له خلکو څخه سختترین عذاب د تصویر جوړونکو وي.

همداسې د موسیقۍ خطرناکې پایلې مو مخکې بیان کړې.

۲ -په کلیو او کوڅو کې اکثراً لاسي سوداګر او بقالان خطرناک دي چې ظاهراً څه سودا خرڅوي او په پټه بل کار پر مخ بیايي لکه دا د کمپلو د بقال قیصه نو د هغوی کلک څارل پکار دي.

۳ -د کور د مسئول د غفلت نتیجه په اصل کې د ټولې کورنۍ بربادي ده او ددې بربادی پوښتنه به د ده څخه کیږي، ځکه د کور مشر او مسئول هغه که نارینه یا ښځینه مور، مشره خور، ښځه وي د کور د نورو کسانو په باره کې مسئول دي.

الله سبحانه وتعالی فرمایي: [يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ وَأَهۡلِيكُمۡ نَارٗا وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلۡحِجَارَةُ] ( سورة التحریم، الآية :۶).

ژباړه: ای مؤمنانو ! خپل ځانونه او خپل اهل عیال له هغه اور څخه وساتئ چې خس یې خلک او تیږي دي.

۴ -د کلي د جومات د امام غفلت، کچیرې د کلي امام فعال وای، خپل مسئولیت یې درک کړی وای، خلک یې له دغو معاصرو بلاوو څخه خبر او ویرولي وای نو دوی به په هغو باندې نه اخته کېدل، نن زمونږ اکثره ځوانان او پیغلې، د قرآن، او علم شرعي پر ځای په سندرو او فلمونو اخته دي، ولې ؟ څوک نشته چې دوی ته شریعت بیان کړي، دوی ته اسلامي دعوت ورکړي، دوی ووېروي، بلکي هغوی له دغو شیانو څخه لرې پاتې شوي نو ځکه شیطاني او انسي شیطانانو ته زمینه برابره شوې ده.

د اطرافونو ځینې علماء خو یوازې د جنازې او مړي دفن کولو پر مهال وعظ کوي او بس چې ته به وایي فقط په همدې ورځ فرض دی او بله ورځ فرض نه دی او نه هم مسئولیت لري، نو باید چې هغوی خپل مسئولیت درک کړي ځکه چې ټولنه د سختو طوفانونو سره مخ ده.

۵ -ټول مسلمانان څوک چې پر الله تعالی او ورځ د آخرت رښتنی ایمان لري هغوی باید د دین قیام لپاره په هر ممکنه توګه چې وي کوښښ وکړي او ننیو ښکاره او پټو اسلام ضد بلاوو ته متوجه او د هغوی پر وړاندې ودریږي.

فعتبروا یا أولو الألباب

## د انټرنيټ څخه د ښې استفادې کولو لارې :

لاندې څو ټکې بيانيږي تر څو کله د نټ عالم ته داخل شئ له هغه څخه د ګټې او فائدې سره ووځئ، نه دا چې وخت مو هم ضايع، بې ګټې او بې فائدې تير شوی او يا حتی په ګناه کې اخسته شئ.

**اول**: خپل هدف مشخص کړئ، د څه د پاره او د څه په لټه کې ياست تر څو تاسې ته کار آسانه او وخت مو ضايع نشي، هدف او مقصد مو خاص د الله جل جلا له رضا وګرځوئ، د مشروع هدف په لټه کې ووسئ.

يوازې يو هدف وټاکی نه ډير اهداف ځکه بيا به مو مشغول کړي او خپل هدف به تر لاسه نه کړئ.

**دوهم**: که په کوم سايټ او ويبلاک کې اشتراک کول غواړې، څه مطلب ليکې يا څه تبصيره نو خپلو ليکلو ته ښه پام کوه، د ټولو ورونو سره داسې تعامل او سلوک کوه لکه څنګه چې ته يې د خپل ځان د پاره غواړي (که د ځان عزت او اکرام غواړي نو د نورو د عزت او اکرام خيال کوه )، څه چې ليکې په هغه کې له الله جل جلا له څخه ووېرېږه ځکه چې د هر حرف محاسبه به در سره کيږي نو داسې څه ليکه چې بيا يې ځواب ولرې.

**دريم**: د هر چا سره خپل زار مه شريک کوه، پر هر چا اعتماد مه کوه، تر څو خدای مه کړه څوک در ته ضرر ونه رسوي، الله (جل جلا له) دې تا د هغوی له ضرر او بدو وساتي.

**څلورم**: که کوم ورور له تا څخه مرسته او مدد غواړي د هغه نه خپله مرسته مه سپموه، الله (جل جلا له) به ستا سره مرسته وکړي.

**پنځم**: پخپل ځان اعتماد کوه، ناهیلې مه کوه، که کوښښ وکړئ په هر هغه څه به پوه شي کوم چې ستا د پاره ګټور وي، ناهیلې مه کوه.

د انټرنیت له لارې ډیرو ورونو او خویندو ډیر ګټور څیزونه زده کړی دي.

**شپږم**: د بې ګټې او ټولو هغو پاڼو چې منکرات او حرام خپروي له مطالعې او کتنې ځان ساته ځکه چې د هغه مطالعه تا ته څه ګټه نه لري او ډیر یې یوازې د خلکو د ګمراه کولو په موخه جوړ شوی دي نو د داسې سایټونو څخه ځان ساته.

**اوم**: مسلمانه وروره او مسلمانې خورې ! نن د فتنو زمانه ده، په دې زمانه کې د ضروري شرعي علم زده کول ډیر اړین دي تر څو سړی وکولای شي حق او باطل حلال او حرام و پیژني او د باطلو تبلیغاتو تر تأثیر لاندې را نه شي.

په انټرنیټ کې ډیر ښه ګټور سایتونه شته چې ډیر مهم او ګټور معلومات خپروي او په دې برخه کې د اسلامي نړۍ علماؤ ډیر لوی خدمت کړی دی.

د انټرنیټ له لارې خلکو ستر علوم تر لاسه کړي دي او د انټرنیټ په وسیله خلکو ډیر کسان اسلام ته دعوت کړي دي او په اسلام باندې مشرف شوي دي.

خو دا هغه کسان دي چې د انټرنیت څخه یې صحي استفاده کړې ده.

آتم: د انټرنیټ کارولو د پاره یو مشخص وخت وټاکی نه دا چې ټول وخت پکې مشغول او مصروف شئ.

## فيسبوکيانو ته څو نصيحتونه

**ګرانو ورونړو او خويندو!**

اسلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!

زه پر تاسې وياړم چې د هيواد په سختو شرايطو کې مو تحصيل وکړ، او بيا مو د اوسني عصر دغه مهمې تنالوجۍ ته چې انټرنيټ دی لاس رسی وموند.

ځنې ورونه د فيسبوک له لیارې ګټور مطالب خپروي او دوی تر خپله وسه د اسلام او ولس د بقا د پاره هلې ځلې کوي، الله جل جلا له دوی ته نور توفيق هم ورکړي ،مګر په فيسبوک کې ځينې ورونه او خويندې بې ګټې او د اسلامې آداب خلاف خپرونې کوي چې په دې مطلب کې مو اصلی هدف همدا دی چې دغه غير اسلامې او اخلاقي ليکنې تاسې ته بيانول او په ګوته کول غواړم او دا خپل مسئوليت بولو تر څو تاسې ور ته متوجه کړو، چې ځينې يې په لاندې ډول دي.

١- د فيسبوک ځينې ځوانان غير اخلاقي او شهوت پاروني تصويرونه خپروي :

لومړي دا چې بې ضرورته د ساه لرونکو تصويرونو څخه په اسلامې شريعت کې منع شوې ده او تحريم يې مخکې بيان شو.

بل دا چې غير اخلاقي او شهوت پارونکي تصويرونه د بې حيايي او فحشاء خرول دي کبيره ګناه ده او د داسې کسانو د پاره د سخت عذاب خبرداری دی کوم چې غواړي په خلکو کې بې حيايي او فحشاء خپره کړي.

قوله تعالی: إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آَمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآَخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (حج ١٩)

یقیناً هغه کسان چې غواړي د مؤمنانو په ډله کې فحشاء او ناوړه کارونه خواره کړي هغوی په دنیا او آخرت کې د سخت دردناک عذاب ور دی الله جل جلا له پوهیږي او تاسې نه پوهیږی.

هر څوک چې د ستا په پاڼه کې د نا محرم، غیر اخلاقي او فاحش تصویر ته ګوري د هغه په ګناه کې به ته ور سره شریک وي

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:«من دعا إلى هدى، كان له من الأجر مثل أجور من تبعه، لا ينقص ذلك من أجورهم شيئا. ومن دعا إلى ضلالة، كان عليه من الإثم مثل آثام من تبعه، لا ينقص ذلك من آثامهم شيئا».(مسلم ۲۶۷۴).

کوم بنده چې د نیکی طرف ته خلقو ته دعوت ورکړو نو ده لره به د هغو ټولو خلکو هومره اجر اوثواب وي څوک چه دده د دعوت سره يې نيک عمل شروع کړی وي.او ددی نیک عمل کونکو له عمله به هيڅ نه کمیږي.او چا چې خلک د یوی ګمراهی طرف ته دعوت کړل نو د دغی ګناه به هومره ګناه وي چې کوم ګناه کونکی د ده د ګمراه کونکی عمل په وجه بې لاری شوي او ګناه کار شوي وي او د دغه خلکو په ګناه کې به هم کوم کمی نه راځی (رواه مسلم ).

او ته به دغه کار ډیر ساده ګڼې ولی خبر به نه وي چې ستا د ګناه پټی څومره دروند شوی دی.

او بل دا چې دا د شیطان دسیسې دي چې ستا تر نظر دغه کار ښه درولي که نه اصلاً دا کار ډیر بد دی یو څو محدود شمیر لنډغر به ستا د تصویر څخه شیطاني خوند واخلي، مګر ډیر کسان به ستا په دې کار لعنت وايي.

نو په دې کار کې ستا څه ګټه شو ؟

له دې بې ګټې کار او فساد څخه لاس واخله ددې پر ځای ګټور شیان خپاره کړه.

۲- د فيسبوک په صفحه کې ډیرو خویندو هم د ځان د پاره پاڼې پرانستې دي او په خپلو پاڼو کې یې په پوره سینګار سره خپل خپل تصویرونه خپاره کړې دي چې دا کار د یوې مسلمانې افغانې میرمنې او نجلی لپاره د شرم کار دی .

مسلمانې خورې تا ته دا کله رواه ده چې ستا تصویر دې بیګانه خلک ووینې ؟ تا ته خو ستا خالق (جل جلا له) امر کوي چې پرده وکړه له نا محرمو ، لقوله سبحانه وتعالی :

[وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ] (النور ۳۱).

یعنې: او ووایه (ای محمده) ایماندارو ښځو ته چه پټې کړئ (له نامحرموڅخه) سترګې خپلې.

[ياأَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاء الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلاَبِيبِهِنَّ] (الاحزاب: ۵۹ ).

ژباړه: ای نبي ووایه ښځو ته دي اولونو ته دي او ښځو د مؤمنانو ته چه خواره دي کاندې په ټولو ځایونو خپلو له ټکریو خپلو.

نو واضح شوه چې مسلمانې بی بی ته د الله پاک حکم دی چې له بیګانه خلکو ستر او پرده وکړي.

د سینګار کړي تصویر خپرولو څخه ستا مطلب څه دی ؟ ملګري پیدا کول غواړې ؟

**خورې** ! په اسلام کې د by friend (د ملګرۍ) سیستم نشته په اسلام کې نکاح ده او تا ته اسلامي شریعت ددې جواز در کړی دی تر څو کوم نیک او صالح کس ته د نکاح درخواست وکړې په دې کې څه شرم او عار نشته او دا اجازه هم شته چې څوک د چا سره نکاح کول غواړي د هغه لیدل جایز دي.

خورې ! که ددې تصوير نه ستا مطلب د نکاح د ملګري پيدا کول وي نو داسې کول جواز نلري، نو ډېر احتياط کوه چې د کوم چا په ظاهري باډې و نه غوليږي خدای مه کړه په داسې لندغر به دې سر شوی وي چې بيا به ټول عمر په غم او بدبختۍ اخته وې.

او که ددې تصوير نه ستا مطلب د نا محرمو سره ملګري، خوشحالي، ساعت تيري وي، نو په دې کې څه شک نشته چې د نامحرم له ملګرۍ، اختلاط، خبرو او ارتباطاتو کې خوند شته ځکه ټول حرام او ټول منکرات خوندور دي او خوندورې شيطاني غذاوي بلل کيږي مګر دا خوندونه ډېر لږ او پايلې يې سختې خطرناکې دي.

او دا کار اصلاً د دوزخ په لاره تلل دي:

انسان د يوه ستر هدف د پاره پيدا شوی دی چې هغه د خپل خالق (جل جلا له) اطاعت او فرمانبرداري ده.

**خورې** ! حجاب واغونده، خپله ښايسته او مبارکه چهره دې د نا محرمو خلکو په مينځ کې مه نشروه، خورکې ! ته د يوه ښايسته مرغلرې مثال لرې مرغلرې سړی له خلکو پټې ساتي هغه په کوڅو او عامو ځايونو کې د خلکو د پاره نه ږدي، ددې کار خوند، فخر ډېر کم دی خو عذاب يې ډېر سخت دی، د ښځو د پاره چې خپل سينګار او ښايست بيګانه خلکو ته قصداً ښکاره کوي تبرج کوي سخت عذاب ذکر شوی دی.

«صنفان من أهل النار لم أرهما: قوم معهم سياط كأذناب البقر يضربون بها الناس، ونساء كاسيات عاريات مميلات مائلات رؤوسهن كأسنمة البخت المائلة، لا يدخلن الجنة ولا يجدن ريحها، وإنَّ ريحها ليوجد من مسيرة كذا وكذا» (رواه مسلم).

ژباړه: په دوزخ کې دوې ډلې داسې دی چې تر اوسه ما نه دي ليدلې يو هغه ډله چې د هغوی په لاسونو کې د (غوايي د لکۍ په شان) قمچينه وي چې په هغې سره دوی نور خلک وهي دوهمه ډله هغه ښځې دي چې د جامو باوجود بربنډې وي چې خلکو ته به خپل مذموم حرکات ښکاره کوي د هغوی سرونه به د اوښانو د بوکام په شان وي دوی به نه جنت ته داخليږي او نه به د جنت خوشبوي له دومره دومره فاصلې څخه مومي.

ددی ډول ښځو امثال مونږ وينو چې تنګي جامې اغوندې چې د بدن د فتنې ځايونه يې واضح ښکاري او دوی قصداً داسې کوي تر څو خلک خپل ځان ته جلب کړي.

د اوښ د بوکام مثالونه هم په فيشنی او عصري ښځو کې وينو.

او هغه کسان چې خلک په کمچينو وهي د هغه نه مراد هغه ډله ده چې حاجتمند خلک به د حکمرانانو دربار ته د خپل حاجت د پاره ورځې او دوی هغوی نه پريږدي او په وهلو سره به يې رټي.

په بل حديث شريف کې راځي: «ثلاثة لا تسأل عنهم: رجل فارق الجماعة وعصى إمامه فمات عاصياً، وأمة أو عبد أبق من سيده فمات، وامرأة غاب عنها زوجها وقد كفاها مؤونة الدنيا فتبرجت بعده، فلا تسأل عنهم» (صحيح، أخرجه أحمد والبخاري في الأدب المفرد والحاكم).

ژباړه: د دريو تنو په باب پوښتنه مه کوه (چه غداب يې ډير سخت او دردونکی دی) يو هغه سړی چې د مسلمانانو اجتماع او ټولنه ترک کړي او د خپل امام او سرپرست څخه نا فرماني وکړي او په همدې حالت کې مړ شي، او هغه وينځه او غلام چې د خپل بادار نه تښتيدلي وي او په همدې حالت کې مړه شي، او هغه ښځه چې خاوند يې غايب وي (چيرې په سفر تللی وي) خو دې ته يې د

ژوند تړول سهولتونه برابر کړي وي خو هغه په دې حالت کې تبرج (بیگانه خلکو ته خپل سینګار ښکاره) کوي پس په دې باره کې سوال مه کوه چې ددی کسانو عذاب درناک او سخت دی.

نو له دې کار څخه توبه وباسه تر څو د دنيا او اخرت اکرام ،عزت او نيکبختې دې په نصيب شي.

ديندار ښځه به په ډير اکرام او عزت سره جنت ته دا خليږي هغې ته به د ډير اکرام او عزت له وجې ويل کيږي ننوځه جنت ته له کومې دوازې چې ستا خوښه وي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: « إِذَا صَلَّتْ الْمَرْأَةُ خَمْسَهَا وَصَامَتْ شَهْرَهَا وَحَفِظَتْ فَرْجَهَا وَأَطَاعَتْ زَوْجَهَا قِيلَ لَهَا ادْخُلِي الْجَنَّةَ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شِئْتِ» (رواه أحمد ١٦٦٤).

يعني: کله چې کومه ښځه پنځه وخته لمونځ وکړي، د رمضان روژه ونيسي، د آبرو حفاظت وکړي او د ميړه اطاعت وکړي، هغې ته ويل کيږي له کومې دروازې چې غواړي جنت ته ننوځه.

٣- د فيسبوک ځينې ځوانان د مړو يا مردګانو اهانت کوي :

يو قوم د بل قوم د مشرانو د مړو اهانت او سپکاوی کوي او د هغه بد او سپک تصويرونه خپروي چې دا کار د يو تحصيل کرده د پاره ډير نا مناسب او د شرم وړ دی او په اسلام کې د ژوندي او مړي اهانت او سپکاوی حرام دی.

د مسلمان اهانت او سپکاوی عظيم جرم دی: روى ابن حبان و الترمذي بإسنادٍ حسن أن عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نظر يوماً إلى الكعبة فقال: (ما أعظمَكِ و أعظمَ حُرمتِكِ ! و المؤمنُ أعظم حُرْمةً مِنْكِ) يعنې الله جل جلا له چې دغه کعبې ته کوم عظمت ورکړی دی د هغه نه د مؤمن عظمت زيات دی.

تاسې يې داسې فرض کړئ که څوک د کعبې رنګول وغواړي فکر وکړئ چې ددې کس سره به مسلمانان څه وکړي ؟ او هغه ته به څنګه جزا ورکړي ؟ خو الله (جل جلا له) د کعبې د ورانولو او اهانت نه د مسلمان په ورانولو او اهانت ډیر خفه کیږي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ وَقِتَالُهُ كُفْرٌ». (بخاری)

مسلمان ته بد ګويي فسق دی او د هغه پر وړاندې جنګيدل کفر دی.

لکه څنګه چې په ژوند کې د مسلمان اهانت او سپکاوی حرام دی همداسې د مرګ نه پس هم د هغه اهانت حرام دی.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «لا تَسُبُّوا الأَمْوَاتَ، فَإِنَّهُمْ قَدْ أَفْضَوْا إِلَى مَا قَدَّمُوا». (بخاري)

ژباړه: مړو ته بد مه وایئ ځکه هغوی د خپلو اعمالو نتيجه ته رسيدلی دي.

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم په دوو کلمو کې خبره خلاصه کړه، يعنې که خاین او غدار تير شوی وي او د تاسې د هغه خيانت او غداري کړوي نو هغه اوس د خپلو اعمالو نتجې ته ورغلی دی او د خپل عمل سزا بهويني، نو تاسې هغه ته بد ګويي مه کوئ.

امام نوي رحمه الله د پورته حديث په بيان کې وايي: د اهل فسق او بدعت د فاسدو او بدو کړنو بيانول د اسلام په چوکات جايز دي تر څو نور خلک د هغوی د ګمرا کونکو اعمالو پسې اقتداء و نه کړي او د هغوی د ګمرا کونکو اعمالو څخه نفرت وکړي.

و في غير المتظاهر بفسق أو بدعة، فأما هؤلاء فلا يحرم ذكرهم بشر للتحذير من طريقتهم، و من الاقتداء بآثارهم و التخلق بأخلاقهم (شرح امام نوی رحمه الله).

د مسلمان اهانت، هغه ته بدګويي، بهتان و غيره كه ژوندې وي او كه مړ حرام دي بيا په خاصه توګه د هغه اهانت په ډېر بدو تصويرونو كې چې د مسلمان ضمير يې بالكل نشي قبلولای د شرم وړ كار دی.

**ځوانه!**

د بيت المال په پانګه او لښت دې تحصيل وكړ فارغ التحصيل شوې، د درديدلې هيواد سترګې تاته وي هغه هيواد چې سخت احتياج او محتاج دی، علمي او صنعتي پرمختګ ته سخت ضرورت لري، نن تا ددې پر ځای چې علمي تحقيق وكړې هيوادوالو ته څه برابر او چمتو كړې په داسې شيطاني لوبو كې دې ځان مصروف ساتلی دی، ايا د يوه مسلمان ځوان د پاره داسې كول څه ګټه لري ؟، په دې لوبو كې دې څه ليدلی دي كوم درد به دې ور ور باندې دوا شي؟

**ځوانه** ! ځواني لويه پانګه ده دغه پانګه په داسې شيطاني څېزونو به بربادوه.

**۴- قوم پرستي :**

د فيسبوک ځينې ځوانان د قوم پرستي په دام نښتي دي، د ژبو او قومونو د اختلاف حكمت دا دی تر څو د انسانانو تر مينځ پيژندګلوي وي، نور نو يو قوم پر بل قوم غوره والی نه لري، مګر غوره والی په تقوی او ديندارۍ كي دی.

د قوم او ژبې سره مينه طبعي ده ولې د بل قوم پر وړاندې دريدل، صف بستي، تفرقې اچول، نفاق ته لمن وهل قوم پرستي ده.

د كفري ځناورې ديموكراسۍ يو عمده او ستر آرمان همدا دی تر څو اسلامې امت ټوټې كړي د اسلامي هيوادونو تر مينځ اختلافات را مينځته كړي او په خاصه توګه هغه هيوادونه چې د دوی تر نظامي اشغال لاندې دي غواړې په هغوی كې اختلافات، تفرقې، قوم بازی، سمت بازۍ را

مینځته کړي او دوی پخلپو کې سره اخته کړي تر څو په خلاص مټ خپل شوم اهداف عملي کړي.

د مسلمان شان دا دی چې د حق بقا به غواړي د مظلوم حمایت او د ظلم مخنوی به کوي هغه که د هر قوم واله وي ځکه په اسلام کې قوم ته څه اعتبار نشته ټول به په قرآن او سنتو خپلې منګولې نښلوي.

په اسلام کې تعصب او قوم پرستي خطرناکې پایلې لري.

رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمايي:«لَیسَ مِنّاَ مَن دَعاَ اِلي عَصَبِیَّةِ وَلَیسَ مِنّاَ مَن قاَتَلَ عَصَبِیَّةً وَلَس ِمِنّاَ مَن ماَتَ عَلي عَصَبَیَّة» (رواه ابوداود).

ژباړه: هغه څوک له مونږ څخه نه دی چه خلک قومیت ته رابولي او هغه څوک له مونږ څخه نه دی چه په دغه منظورجګړه کوي او هغه څوک له مونږ څخه نه دی چه په همدې مفکوره مړ شي.

دا ځکه چې د قوم طرف دي ونیولو او حق طرف دې پریښود نو که بیا ظلم کیږي ته به د ظالم مدد کوي ځکه قوم دی که مظلوم بربادیږي ته به د ظالم مرسته کوې ځکه قوم دی.

بل ځای فرمايي:«من مشى ظالم لیقویه و هو یعلم انه ظالم فقد خرخ من الاسلام» (مشکوة المصابیح)

یعنې: څوک چې د ظالم سره ددې د پاره تګ وکړئ چې هغه تقویه کړي، په داسې حال کې چې دی د هغه په ظلم خبر وي نو یقیناً چې دغه کس له اسلام څخه ووت.

ډير کسان په همدې قوم پرستۍ مړه شوم چې غوښتل يې د سلطنت او قدرت خوند ووينې د اسلام قيام او بقا يې نه غوښته او غوښتل يې خپل قوم سلطنت ته ورسوي خو هم يې آرمانونه خاورې شول او هم په عصبيت مړه شول.

نن زمونږ هغه ځوانان چې دوی ته مو له کلونو کلونو را هيسې د خدمت سترګې په لاره وې ددې پر ځای چې خپل محتاج دردلي هيواد ته خدمت وکړي، د اسلام او هيواد د بقا د پاره هلی ځلی وکړي، علمي تحقيقات او څيړنې وکړي د هغه پر ځای پر داسې شيطاني لوبو او دامونو کې نښتي چې نه يې د خپل ځان ګټه پکې شته او نه هم د بل چا، نه د دنيا په درد لګيږي او نه هم د آخرت، بس يو شيطاني ورکشاپ دی چې د ځواني لوېې پانګې ختموي.

له دې کړنو توبه وباسئ ځکه چې داسې کارونه هيڅ ګټه نه لري خپل دماغ د اسلام په قيام، د هيواد په خدمت او علمي تحقيقاتو داسې مصروف او مشغول کړه چې ددې شيطاني مفکورو د پاره يوه لحظه وخت هم پيدا نه کړې.

دا مرضونه اوس ښه ډير دي او په ټولو ډلو کې موجود دي ځکه چې د مردارې غربي ډيموکراسۍ مردار غبار وهلي يو .

ځوانه! تا ته مې ځکه دا نصحيت وکړ چې د تا په ځوانۍ مې نه لوريږي ستا دماغ ځوان، خالی او پاک دی سر له اوسه خپل دماغ د داسې څه نه ډک کړه چې سبا ورځې ته دې په درد ولګيږي.

په ځوانۍ کې تقوی ، توبه او عبادت خاص اهميت لري ، هغه اوه ډلې چې هغوی به د قيامت په ورځ د الله تعالی د رحمت تر سيورې لاندې وي د هغو څخه يو هم هغه ځوان دی چې ځواني يې په عبادت تيره کړې وي .

«..وَالشَّآبُّ نَشَآءَ فِي عِبَادَةِ الله ...» (متفق عليه ) .

ژباړه: هغه ځوان چه په ځوانۍ کې د الله تعالی عبادت کوي.

و بالله توفيق وصلى الله على محمد وآله وصحبه وسلم اجمعين

و السلام عليكم

حمد الله "شاكري"

طالب العلم الأكاديمية الأسلامية